# د کتاب په اړه


د کتاب نوم : قرآني معلومات (۱)

ليکوال : مفتي کفايت الله وردګ

د کمپيوټر چارې : محمد نذير (ذبيح) 03138182431

د چاپ چارې : ابو منظر (افغاني)

د چاپ وار : لمړی

د چاپ شمېره : ۱۰۰۰ ټوکه

ZamZam



زم زم

Publication Company

خپرندويه ټولنه

Zamzam_publication@yahoo.com

00923009808094
00923009101098

Unit R 7 Alwajid Plaza, Faisalcolony Chawk, Dalazak road
Peshawar, KPK, Pakistan




# قرآني معلومات

په زړونو کې د اسلامي ښکلې [illegible] زمونږ ددې لپاره ملا تړلې ده چې تر پورتني نوم لاندې د کتابونو يوه سلسله روانه وساتو پدې سلسله کې مونږ کوښښ کوو چې په ساده او روانه پښتو کې د قرآن کريم په اړه مختلفې موضوع ګانې راغونډې او خپلو پښتنو ورونو ته يې وړاندې کړو سره ددې چې پدې اړه کتابونه له وړاندې نه هم ډېر دي هرچا د خپل وس مطابق کوښښ کړی دی مونږ د هغوی د ټولو کوښښونو قدر کوو او د الله ﷻ نه ورته اجر عظيم غواړو لکن په زمزم کې شريکو ملګرو چې ددې سلسلې لپاره کومه نقشه تياره کړيده هغه تر بهتر څخه هم بهترينه ده پدې سلسله کې به داسې نکتې را جمع کيږي چې د قرآن کريم په اړه ګوک د صفر نه واخلي د مهارت تر حد پورې يې ورسوي او ددې سلسلې به له ډېرو صفاتو څخه يو صفت دا وي چې که څوک په ځان ددې د مطالعې التزام وکوي نو بغير د استاذ نه به په کور کې دی ترينه داسې معلومات حاصل کړي لکه ژوندی استاذ چې دده سره په کور کې وي .

پدې کتابونو کې :

تاسې ته ستاسې په ژبه ديني معلومات وړاندې کول .

لتاسې سره د سمې لارې په پيدا کولو کې مرسته کول .

تاسې ته د اسلامي مطالعې لپاره د ښو او فايده منو موادو په لاس درکول .

له لويو كتابونو څخه لويې خبرې تاسې ته ستاسې د اسانتيا لپاره د وړو رسالو په شكل كې دركول .

ديني ضروري معلومات چې كېداى شي اوس ستاسې هېر شوي وي بېرته تاسې ته در په زړه كول .

د الله مقدس كتاب ته په ښكلې پښتو ژبه خدمت كول .

او داسې نور مطلبونه خوندي دي .

پدې سلسله كې مونږ كوښښ كوو چې يوه خبره هم د خپل دماغ نه پكې ځاى نه كړو د كتاب په آخر كې به مونږ د هغه كتابونو لست خامخا ستاسې خدمت ته وړاندې كوو چې مونږ ترينه اخذ كوو.

كه پدې اړه ستاسې څه ډول اعتراض، سوال، نيوكه، نكته، نظريه او يا مشوره وي نو ددې سلسلې چلونكې به يې لتاسې څخه نه يوازې د كور وداني په ويلو سره په ورين تندي واوري بلكه د بيا چاپ كولو په وخت به ستاسې مشوره د خپلو كتابونو ښائست وګرځوي

لله الحمد داده ستاسې تر لاسونو پورې ددې مباركې لړۍ اوله كړۍ در ورسېده اميد دى چې ستاسې د خوښې وړ به وګرځي .

مننه

د زمزم خپرندويه ټولنې اداره

E-mail: zamzam_publication@yahoo.com

Fb.com/zamzam07

د لوى او متعال الله په نامه

حمد او ثناء ده هغه ذات لره چې **قرآن کريم** يې د خلکو د هدايت لپاره په رسول الله ﷺ باندې نازل کړی دی زه ددې ګواهي ورکوم چې الله يو دی شريک نه لري هماغه ذات دی چې قرآن کريم يې نازل کړی دی او په هغه باندې يې عمل کول د انسان د هدايت ذريعه ګرځولې ده د خلکو لپاره لاره صفا کوي او څوک چې پرې عمل وکوي هغوی په سمه لار دي او زه ددې ګواهي ورکوم چې محمد د الله بنده نبي او رسول دی د الله درود او سلام د وي په هغه او دهغه په ټول آل او اصحابو باندې او په ټولو هغه کسانو باندې چې تر قيامت پورې د هغه په لاره روان وي .

# د قرآن کريم تعريف

په لغت کې : قرآن لفظ په لغت کې د قرأ نه را اخستل شوی دی (چې لوستلو ته وايي) او قرآن ته هم قرآن ددې امله وايي چې دا لوستل کيږي او يا قرآن جمع کولو او ټولولو ته وايي عرب وايي : قرأت الشيء قرآنا دا په هغه وخت کې وايي چې کله يو شی سره را ټول کړي او قرآن ته بيا قرآن ددې امله وايي چې پدې کې سورتونه سره را ټول کړل شوي دي .

په اصطلاح کې :

کلام الله المنزل علي نبيه محمد المعجز بلفظه المتعبد بتلاوته المنقول بالتواتر المکتوب في المصاحف من أول سورة الفاتحة إلي آخر الناس.

ترجمه : د الله کلام دی چې دهغه په نبي محمد ﷺ باندې نازل شوی دی په خپل لفظ سره (يعني د همدې موجوده الفاظو د قرآن سره) تلاوت يې عبادت دی (يعني په مانځه کې تلاوت کيږي د عبادت په ډول او همدارنګه په تلاوت باندې يې ثواب ورکول کيږي) په مصحفونو کې (د قرآن کريم په نسخو کې) ليکل شوی دی د الحمد لله نه شروع کيږي او د سورة الناس تر آخره پورې دی .

د تعريف وضاحت

کلام : د قرآن کريم په تعريف کې دا ټکی جنس دی پدې کې ټول کلامونه داخل دي .

الله : کلام چې الله ته مضاف شو هغه کلامونه ورځخه ووتل چې د الله نه وي بلکه د انسانانو ، ملائکو او پېريانو وي .

المنزل: پدې سره هغه کلامونه ووتل چې هغه د الله دي لکن بندګانو ته ندي نازل شوي او دهغه په اړه الله په قرآن کريم کې فرمايلي دي :

سورة الکهف آیة ١٠٩

قُلْ لَّوْ كَانَ الْبَحْرُ مِدَادًا لِّكَلِمٰتِ رَبِّيْ لَنَفِدَ الْبَحْرُ قَبْلَ اَنْ تَنْفَدَ كَلِمٰتُ رَبِّيْ وَ لَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهٖ مَدَدًا (١٠٩)

ترجمه : ورته ووایه که چېرته سمندر زما د رب د کلام لپاره سیاهي (رنګ) شي مخکې ددې چې زما د رب کلام ختم شي نو بحر به ختم شي اګر مونږ د هغه سره بل سمندر د رنګ ملګری کړو .

په بل ځای کې الله ﷻ فرمایي :

سورة لقمان آیة ٢٧

وَ لَوْ اَنَّ مَا فِي الْاَرْضِ مِنْ شَجَرَةٍ اَقْلَامٌ وَّ الْبَحْرُ يَمُدُّهٗ مِنْۢ بَعْدِهٖ سَبْعَةُ اَبْحُرٍ مَّا نَفِدَتْ كَلِمٰتُ اللّٰهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ (٢٧)

ترجمه : که چېرته داسې شي چې په زمکه کې څومره ونې دي دا ټولې قلمونه شي د سمندر ټولې اوبه رنګ شي او بیا ورسره د اوو سمندرونو نورې اوبه هم د رنګ په شکل کې دهغه سره ملګرې کړل شي نو د الله ﷻ کلمات (دهغه صفات) به (په لیکلو لیکلو) ختم نشي الله ﷻ غالب او د حکمت خاوند دی .

د قرآن کریم په تعریف کې (علی محمد) چې راغلو هغه کلامونه ورځخه ووتل چې په نورو پیغمبرانو باندې نازل شوي وو .

(المتعبد بتلاوته) پدې سره احاديث قدسي ووتل ځکه د هغې تلاوت په مانځه کې نه کيږي او د (المتعبد بتلاوته) دوه معنی ګانې دي :

١. دا په مانځه کې په عبادت کې تلاوت کيږي او ترڅو چې قرآن کريم په مانځه کې تلاوت نشي مونځ نه کيږي .

٢. د المتعبد بتلاوته دوهمه معنی داده چې ددې په تلاوت باندې ثواب ورکول کيږي رسول الله ﷺ فرمايي : من قرأ حرفاً من كتاب الله فله به حسنة والحسنة بعشر أمثالها لا أقول الم حرف ولكن ألف حرف ولام حرف وميم حرف .

ترجمه : چا چې د الله ﷻ له کتاب څخه يو حرف ولوست هغه ته به يوه نيکي ورکول کيږي او الله ﷻ د يوې نيکي لس چنده ثواب ورکوي زه دا نه وايم چې الم حرف دی بلکه الف يو حرف دی لام بل حرف دی او ميم بل حرف دی (معنی دا چې الله ﷻ به د الم په لوستلو باندې ديرش نېکۍ بنده ته ورکوي)

د قرآن کريم په تعريف کې امام الزرقاني رحمه الله فرمايي :

أما لفظ القرآن فهو في اللغة مصدر مرادف للقراءة ثم نقل من هذا المعنى المصدري وجعل اسماً للكلام المعجز المنزل على النبي

صلى الله عليه وسلم من باب إطلاق المصدر على مفعوله

ترجمه : دا لفظ د قرآن په لغت کې مصدر دی د قراءة (لوستلو) مرادف دی بيا له دې مصدري معنی څخه نقل شو او د هغه کلام لپاره نوم چې په نبي ﷺ باندې نازل شوی دی له قبيلې د اطلاق د مصدر (قرآن ) نه په مفعول (مقروء لوستل شوي باندې) (مناهل العرفان) .



# د قرآن کریم فضیلت

الله د قرآن کریم په اړه فرمايي :

سورة ابراهيم آية ١

الٓرٰ ۟ كِتٰبٌ اَنۡزَلۡنٰهُ اِلَيۡکَ لِتُخۡرِجَ النَّاسَ مِنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوۡرِ ۙ۬ بِاِذۡنِ رَبِّهِمۡ اِلٰى صِرَاطِ الۡعَزِيۡزِ الۡحَمِيۡدِ ۙ(١)

ترجمه : دا (قرآن ) یو کتاب دی چې نازل کړی (لېږلی) دی مونږ تاته لپاره ددې چې خلک را وباسې پدې کتاب سره له تیارو څخه رڼا د ایمان ته په اذن (اراده او توفیق) د رب د دوی (طرف د) لارې د هغه ته چې ښه غالب دی (په انفاذ د احکامو) ښه تل ثنا ویلی شوی دی (په محامدو) . (کابلی تفسیر)

هغه کسان چې ددې تلاوت زیات کوي دهغوی په اړه الله فرمايي :

سورة فاطر آية ٢٩ او ٣٠

اِنَّ الَّذِيۡنَ يَتۡلُوۡنَ كِتٰبَ اللّٰهِ وَ اَقَامُوا الصَّلٰوةَ وَ اَنۡفَقُوۡا مِمَّا رَزَقۡنٰهُمۡ سِرًّا وَّ عَلَانِيَةً يَّرۡجُوۡنَ تِجَارَةً لَّنۡ تَبُوۡرَ ۙ(٢٩) لِيُوَفِّيَهُمۡ اُجُوۡرَهُمۡ وَ يَزِيۡدَهُمۡ مِّنۡ فَضۡلِهٖ ؕ اِنَّهٗ غَفُوۡرٌ شَكُوۡرٌ (٣٠)

ترجمه : بېشکه هغه کسان چې لولي کتاب د الله (قرآن ) او قائموي (تل سم اداء کوي سره له ټولو حقونو) مونځ او لګوي (په لاره د الله کې) ځینې له هغو شیانو څخه چې ورکړی مو دي

دوی ته (لګوي ئې) په پټه او په ښکاره امید لري دوی د داسې یوه تجارت چې له سره نه هلاکیږي (له مینځه نه ځي) د پاره ددې چې پوره ورسوي (الله ﷻ) دوی ته اجرونه (د عملونو) د د وی او زیات ورکړي دوی ته له فضله خپله بېشکه چې دغه (الله ﷻ) ښه ښونکی دی ښه قبلونکی (د احسان د محسنینو) دی.

## قرآن رښتونی هدایت

همدا قرآن کریم هغه کتاب دی چې ددې ذمه واري ورکولی شي چې څوک په ده باندې منګولې ولګوي دی به یې حق ته رسوي او چا چې له دې څخه مخ واړولو او په بله لاره لاړو هغه ګمراه کیږي او یوازې دا قرآن دی چې تر بل هر کتاب څخه زیات په نسخو کې لیکل کیږي، په سینو کې ساتل کیږي، په ژبو تلاوت کیږي ، په غوږونو آورېدل کیږي او په قرآن کریم سره مصروفیت بهترین عبادت دی او د بهترین ثواب حاصلولو بهترینه ذریعه ده لکه مخکې چې تېر شول رسول الله ﷺ فرمایلي وو چې د قرآن کریم په تلاوت سره په هر تکي باندې لس نیکی ګټل کیږي او قرآن کریم یو داسې جامع کتاب دی چې پدې کې د هر شي علم شته احکام پکې شته، متلونه، د حکمت او پند خبرې، وعظ، نصحیت، تاریخ، قصې، د اسمانونو خبرې بلکه

هرشی پکې شته رسول الله ﷺ چې په یو حدیث کې د قرآن کریم صفت کوي فرمايي :

**كِتَابُ اللَّهِ فِيهِ نَبَأُ مَا قَبْلَكُمْ ، وَخَبَرُ مَا بَعْدَكُمْ ، وَحُكْمُ مَا بَيْنَكُمْ ، هُوَ الْفَصْلُ لَيْسَ بِالْهَزْلِ ، هُوَ الَّذِي مَنْ تَرَكَهُ مِنْ جَبَّارٍ قَصَمَهُ اللَّهُ ، وَمَنِ ابْتَغَى الْهُدَى فِي غَيْرِهِ أَضَلَّهُ اللَّهُ ، فَهُوَ حَبْلُ اللَّهِ الْمَتِينُ ، وَهُوَ الذِّكْرُ الْحَكِيمُ ، وَهُوَ الصِّرَاطُ الْمُسْتَقِيمُ ، وَهُوَ الَّذِي لَا تَزِيغُ بِهِ الْأَهْوَاءُ ، وَلَا تَلْتَبِسُ بِهِ الْأَلْسِنَة ، وَلَا يَشْبَعُ مِنْهُ الْعُلَمَاءُ ، وَلَا يَخْلَقُ عَنْ كَثْرَةِ الرَّدِّ ، وَلَا تَنْقَضِي عَجَائِبُهُ ، وَهُوَ الَّذِي لَمْ يَنْتَهِ الْجِنُّ إِذْ سَمِعَتْهُ أَنْ قَالُوا ( إِنَّا سَمِعْنَا قرآن ا عَجَبًا ) ، هُوَ الَّذِي مَنْ قَالَ بِهِ صَدَقَ ، وَمَنْ حَكَمَ بِهِ عَدَلَ ، وَمَنْ عَمِلَ بِهِ أُجِرَ ، وَمَنْ دَعَا إِلَيْهِ هُدِيَ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ**

ترجمه : د الله ﷻ کتاب دی پدې کې د هغه خلکو قصې دي چې لتاسې وړاندې تېر شوي دي او د هغه کسانو خبر پکې شته چې لتاسې به وروسته راځي او ستاسې په مینځونو کې فیصله په همدې کې ده دا بېلونکی د حق او باطل دی دا ټوکې نه دي هغه څوک چې دا پرېږدي (عمل وربانډې نه کوي) الله ﷻ به يې هلاک کړي هغه څوک چې ددې نه بغير بل ځای هدايت ولټوي الله ﷻ به يې ګمراه کړي دا د الله ﷻ کلکه رسۍ ده د حکمت نه ډک پند دی ، نېغه لاره ده او دا هغه کتاب دی چې ددې

متابعت کونکي خواهشات بلې خوا ته نشي اړولی ، دا په ژبو باندې نه سختیږي ، علماء دده څخه نه مړیږي (چې دده په علومو کې نوره پلټنه بس کړي) د ډېرو تکرار کولو له امله نه زړیږي (چې هرڅو یې تلاوت کوې لذت یې نه کمیږي) ددې عجیبه شیان نه ختمیږي دا هغه کلام دی چې کله پېریانو واورېدو بې ځنده یې وویل (مونږ څه عجیب کلام واورېدو) دا هغه کتاب دی چې ددې مطابق څوک خبره کوي نو رښتیا به وایي، څوک چې په ده فیصله کوي نو د عدل فیصله به وي، څوک چې پدې باندې عمل کوي اجر به ورکول کیږي ، څوک چې دې ته دعوت کوي هغه ته د سمې لارې هدایت شوی دی (الدارمي)



## الله تــه د رسېدو لاره

د حضرت سعيد بن ابي سعيد رحمه الله نه روايت چې حضرت ابي شريح الخزاعي ❼ فرمايل : خرج علينا رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال : أبشروا أبشروا ؛ أليس تشهدون أن لا إله إلا الله وأني رسول الله ؟ قالوا : نعم ، قال : فإن هذا القرآن سبب طرفه بيد الله وطرفه بأيديكم فتمسكوا به ، فإنكم لن تضلوا ولن تهلكوا بعده أبدا .

ترجمه : مونږ ته رسول الله ﷺ را ووتلو ويې ويل : زيرى قبول كړئ زيرى قبول كړئ آيا تاسې ددې ګواهي نه وركوئ چې د الله ﷻ نه بغير بل د عبادت لائق نشته او دا چې زه د الله ﷻ رسول يم؟ صحابه وو ورته وويل : هو مونږ همدا ګواهي وركوو رسول الله ﷺ وويل : نو بيا دا قرآن يو سبب دى يو طرف يې د الله ﷻ سره دى او بل طرف يې ستاسې په لاسونو كې دى پدې باندې منګولې ولګوئ تاسې به ددې څخه وروسته ګمراه نه شئ او ددې نه وروسته به بالكل هلاک نه شئ .

## قرآن شفاعت کونکی

د حضرت ابي امامة الباهلي ❼ نه روایت دی هغه فرمایي چې رسول الله ☸ فرمایل : اقرؤوا القرآن فإنه یأتي یوم القیامة شفیعاً لأصحابه (صحیح میسلم)

ترجمه : قرآن لولئ ځکه دا د قیامت په ورځ باندې د خپلو ملګرو لپاره شفاعت کونکی راځي (د خپل ملګرو شفاعت به کوي) ملګري یې هغه کسان وي چې تلاوت یې کوي او عمل وربانديې کوي .

## د قرآن د قاري مرتبې

د حضرت عبد الله ابن عمر نه ❼ روایت دی هغه فرمایي : رسول الله ☸ فرمایل : یقال لصاحب القرآن اقرأ وارتق ورتل کما کنت ترتل في الدنیا فإن منزلتك عند آخر آیة تقرؤه (صحیح الجامع8122)

ترجمه : د قرآن صاحب (ملګري) ته به (په آخرت کې) وویل شي چې قرآن لوله او څه خېږه او داسې تلاوت یې کوه لکه تا به چې په دنیا کې کولو او ستا مرتبه او منزله ستا د وروستنی آیت سره ده .

یعني په مرتبو د جنت کې به د پورته ختلو اجازه ورته وکوله شي او تر هغه وخته پورې چې

دده تلاوت روان وي نو دی به پدې مرتبو کې پورته ځي او کله چې دده آخري آیت ختم شي نو بیا به دی ودریږي او د تلاوت په وخت کې چې څومره پورته تللی وو دده مرتبه به دومره لوړه وي.

د حضرت جابر ❼ نه روایت دی چې په اُحد کې د مشکلاتو له امله دوه کسان شهیدان په یوه جامه کې نغښتل کېدل چې کله به دوه کسان په یو ځای د نغښتل کېدلو لپاره تعین شول نو رسول الله ☸ به پوښتنه کوله چې په دوی دواړو کې د چا ډېر قرآن یاد وو؟ نو چې کوم یو به ورته و ښودل شو رسول الله ☸ به هغه مخې ته کېښود او بیا به یې ورپسې بل ملګری کېښود (صحیح البخاري)

د حضرت عمر ❼ نه روایت دی هغه فرمایل : أما إن نبيكم صلى الله عليه وسلم قد قال :إن الله يرفع بهذا الكتاب أقواماً ويضع به آخرين). صحيح مسلم

ترجمه : بېشکه ستاسې نبي ☸ ویل : بېشکه الله ▣ پورته کوي پدې کتاب سره (په تلاوت سره او پدې باندې د عمل کولو سره) قومونه او ښکته کوي (ددې د تلاوت د نه کولو له امله او ددې په احکامو د عمل نه کولو له امله) نور قومونه .

د حضرت عثمان ❼ نه روایت دی هغه فرمايي :
رسول الله ☸ فرمایل : خیرکم من تعلم القرآن وعلمه .صحیح البخاري
ترجمه : پتاسې کې غوره کس هغه دی چې قرآن زده کړي او بیا ئې نورو ته ور وښيي .
قرآن کریم هغه کتاب دی چې الله ▣ یې په تلاوت کې دهغه کسانو لپاره خوند ایښی دی چې هغوی رښتیني مؤمنان دي او څوک چې یو ځل ددې تلاوت خوند وڅکي هغه بیا هېڅکله تلاوت نه پریږدي
رسول الله ☸ یې بیا بیا په تلاوت باندې حکم او ټینګار کړی دی رسول الله ☸ فرمايي :
من قرأ عشر آیات في لیلة لم یکتب من الغافلین
ترجمه : څوک چې د شپې لس آیتونه تلاوت کړي هغه د غافلینو څخه نه ګڼل کیږي .
ومن قرأ خمسین آیة کتب من الذاکرین
ترجمه : چا چې د قرآن کریم څخه پنځوس آیتونه تلاوت کړل هغه به د ذکر کونکو له جُملې نه ولیکل شي .
ومن قرأ مائة آیة کتب من القانتین
ترجمه : او چا چې د قرآن کریم څخه سل آیتونه تلاوت کړل هغه به د فرمانبردارانو په جمله کې ولیکل شي .
ومن قرأ مائتي آیة کتب من الخاشعین

ترجمه : او چا چې دوه سوه آيتونه له قرآن کريم څخه تلاوت کړل هغه به د الله ﷻ نه د وېرېدونکو له جملې نه وليکل شي .

ومن قرأ خمسمائة آية كتب من المجتهدين

ترجمه : او چا چې پنځه سوه آيتونه له قرآن کريم څخه تلاوت کړل هغه به د مجتهدينو له جملې څخه وليکل شي .

ومن قرأ ألف آية كتب له قنطار ، والقنطار خمسون ألف مثقال ذهب ، والمثقال اربعة وعشرون قيراطا ، أصغرها مثل جبل أُحد واكبرها ما بين السماء والأرض

ترجمه : او چا چې زر آيتونه تلاوت کړل هغه ته به يو قنطار وليکل شي او قنطار پنځه سوه مثقاله سره زر دي او يو مثقال څلور ويشت قيراطه دى چې وړوکى يې لکه د احد د غره په شان دى او لوى يې دومره دى لکه د زمکې او اسمان په مينځ کې فاصله .

رسول الله ﷺ په بل ځاى کې فرمايي : ان الذي ليس في جوفه شئ من القرآن كالبيت الخرب (رواه الترمذي)

ترجمه : هغه کس چې په ذهن کې يې د قرآن کريم څخه برخه نه وي هغه لکه خراب کور داسى دى (چې د هستوګنې نه وي او نه پکې څوک هوسيږي)

رسول الله ﷺ فرمايي :

من استمع إلى آية من كتاب الله كتبت له حسنة مضاعفة ومن تلاها كانت له نوراً يوم القيامة (رواه الامام احمد)

ترجمه : چا چې د قرآن كريم يو آيت ته غوږ ونيولو الله ﷻ به څو چنده نيكي ورته وليكي او چا چې تلاوت كړو دا به د قيامت په ورځ دده لپاره يوه رڼا يي شي .

د حضرت عبد الله ابن عباس ﵁ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ﷺ فرمايل : عليك بتلاوة القرآن فإنه نور لك في الأرض وذكر لك في السماء

ترجمه : د قرآن كريم تلاوت كوه ځكه دا ستا لپاره په زمكه كې رڼا يي ده او په اسمان كې ستا ذكر دى (ددې له امله به ته په ا سمان كې يادېږې)

## د بسم الله فضیلت او برکت

بسم الله ویل د هر نېک کار په شروع کې سنت ده حضرت سلیمان علیه السلام چې کله بلقیس ته له خپل لوري نه لیک ور لېږلو ورته یې پکې ولیکل :

سورة النمل آیة ٣٠

انَّهُ مِن سُلَيْمَانَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

ترجمه : دا خط د سلیمان له لوري نه دی او دا خط د رحمن او رحیم الله په نوم سره دی .

نو په بسم الله سره شروع کول د پیغمبر طریقه ده او ډېره عالي ده زمونږ اسلام هم مونږ ته هر وخت پدې خبره ټینګار کوي چې نېک کار په بسم الله سره شروع کړو رسول الله ﷺ فرمایي : کل أمر ذي بال لا یبدأ فیه ببسم الله فهو أبتر (أخرجه أبو داود والنسائي وابن ماجة ) (ترجمه : هر نیک کار چې په هغه کې په بسم الله سره شروع ونشي دهغه برکت به کم وي)

# بسم الله صرف د روا کار لپاره ویل کیږي

هغه کار چې د ثواب کار وي او یا محض روا هم وي نو دهغه په شروع کې بسم الله ویل سنت دي او هغه کار چې مکروه وي او یا حرام وي هغه ته بسم الله ویل هم روا نه دي ددې وجه امام جلال الدین السیوطي (د جلالین یو مصنف) بیان کړېده هغه فرمایي : لأن الغرض من البسملة التبرك في الفعل المشتمل علیه، والحرام لا یراد کثرته وبرکته وکذلك المکروه.

ترجمه : ځکه د بسم الله نه غرض دادی چې په کوم کار کې شروع کیږي چې په هغه کې تبرک حاصل شي او د حرام کار تبرک او زیاتوالی مراد نه وي .

امام الطحاوي په مراقی الفلاح باندې په خپله حاشیه کې لیکلي دي:

والصحیح أنه إن استحل ذلك عند فعل المعصیة کفر ، وإلا لا، وتلزمه التوبة إلا إذا کان علی وجه الاستخفاف فیکفر أیضا

ترجمه : او صحیح خبره داده که ده بسم الله ویل د ګناه په شروع کې روا ګڼلي وي نو وربانديې کافر کیږي او که روا یې نه وي ګڼلې نو بیا نه کافر کیږي لکن توبه ویستل وربانديې ضروري دي او که د مسخرو په ډول یې د ګناه په شروع کې بسم الله

ويلې وي دا د بسم الله بې عزتي ده نو بيا هم کافر کيږي .

نو معنی دا چې د ګناه د شروع لپاره بسم الله ويل هم ګناه ده لکن هغه کس چې بسم الله ويل يې عادت وي د هر کار په شروع کې يې په خوله باندې راځي بغير ددې چې دی فرق وکوي چې دا کار حرام او که حلال دی نو پدې صورت کې يې که په خوله باندې بسم الله راغله نو ګنهګار به نه وي او دا به په بسم الله پورې مسخرې کول هم نه وي ځکه مسخرې کول په قصد سره وي او اوس ده بسم الله بې ارادې ويلې ده لکن بيا هم چې توبه وباسي او استغفار وکوي نو غوره خبره ده .

## بسم الله د اوداسه په شروع کې

د اوداسه په شروع کې بسم الله ويل سنت دي پدې اړه د حضرت ابي هريره ❼ نه روايت دی چې رسول الله ☸ فرمايي :

**لاَ وُضُوءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرْ اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ** (ابي داود)

ترجمه : د چا چې اودس نه وي مونځ يې نه صحيح کيږي او چا چې بسم الله ونه ويله اودس يې نه صحيح کيږي .

بسم الله د دروازې د بندولو په وخت

د حضرت جابر بن عبد الله ❼ نه روایت دی هغه فرمايي رسول الله ☸ فرمايل :

اذَا كَانَ جُنْحُ اللَّيْلِ أَوْ أَمْسَيْتُمْ فَكُفُّوا صِبْيَانَكُمْ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْتَشِرُ حِينَئِذٍ فَإِذَا ذَهَبَ سَاعَةٌ مِنْ اللَّيْلِ فَخَلُّوهُمْ ، وَأَغْلِقُوا الأَبْوَابَ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ لا يَفْتَحُ بَابًا مُغْلَقًا... الحديث (رواه البخاري)

ترجمه : کله چې د شپې شروع وه او یا پر تاسې باندې ماښام راغلو نو خپل ماشومان (په کورونو کې) بند کړئ ځکه پدې وخت کې شیطانان خپریږي کله چې د شپې لږ وخت تیر شو نو بیا یې پریږدئ (د شپې) خپلې دروازې بندې کړئ او بسم الله وربانديې ووایاست ځکه شیطان بنده دروازه نه خلاصوي.

## بسم الله د خوراک د شروع کولو په وخت

رسول الله ﷺ حضرت انس ابن مالک ❼ ته ویل :
**يَا غُلامُ سَمِّ اللَّهَ ، وَكُلْ بِيَمِينِكَ ، وَكُلْ مِمَّا يَلِيكَ** (ترجمه : ای هلکه بسم الله ووایه ، په ښي لاس خوراک کوه ، او کوم چې ستا په طرف کې وي دهغه نه خوراک کوه (د بل چا له طرف نه یې مه را کش کوه) (رواه البخاري)

⇦ چې د خوراک په سر کې بسم الله ویل هېر شي نو بیا دي وروسته ووایي : حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل :
**إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ طَعَامًا فَلْيَقُلْ بِسْمِ اللَّهِ فَإِنْ نَسِيَ فِي أَوَّلِهِ فَلْيَقُلْ بِسْمِ اللَّهِ فِي أَوَّلِهِ وَآخِرِهِ**

ترجمه : کله چې په تاسې کې کوم یو خوراک کولو نو بسم الله د ووایي او که یې په اول کې هېره وه نو بیا د وروسته ووایي **بِسْمِ اللَّهِ فِي أَوَّلِهِ وَآخِرِهِ**

⇦ د بسم الله ویلو سره په خوراک کې برکت پیدا کیږي حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي :
**أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْكُلُ طَعَامًا فِي سِتَّةٍ نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ فَأَكَلَهُ بِلُقْمَتَيْنِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا إِنَّهُ لَوْ كَانَ ذَكَرَ اسْمَ اللَّهِ لَكَفَاكُمْ فَإِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ**

**طَعَامًا فَلْيَذْكُرْ اسْمَ اللَّهِ فَإِنْ نَسِيَ أَنْ يَذْكُرَ اسْمَ اللَّهِ فِي أَوَّلِهِ فَلْيَقُلْ بِسْمِ اللَّهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ . (رواه احمد)**

ترجمه : رسول الله ﷺ خوراک کولو د شپږو کسانو سره نو یو کوچی راغلو د دوی په مخ کې ایښی خوراک یې په دوو لقمو (نوړیو) کې خلاص کړو بیا رسول الله ﷺ و فرمایل : که چېرته دي کس د خوراک په شروع کې د الله ﷻ نوم اخیستی وای نو دا خوراک ستاسې بس کېدو نو چې کله په تاسې کې کوم یو خوراک کوي نو د الله ﷻ نوم د یاد کړي (بسم الله د ووایي) او که یې په اول کې هېره شوه نو په آخر کې دې بیا ووایي **بِسْمِ اللَّهِ أَوَّلَهُ وَآخِرَهُ**

## بسم الله كور ته د ننوتلو په وخت

د حضرت جابر بن عبد الله ❼ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ☸ فرمايل :

**إِذَا دَخَلَ الرَّجُلُ بَيْتَهُ فَذَكَرَ اللَّهَ عِنْدَ دُخُولِهِ ، وَعِنْدَ طَعَامِهِ ، قَالَ الشَّيْطَانُ : لا مَبِيتَ لَكُمْ وَلا عَشَاءَ ، وَإِذَا دَخَلَ فَلَمْ يَذْكُرْ اللَّهَ عِنْدَ دُخُولِهِ ، قَالَ الشَّيْطَانُ : أَدْرَكْتُمْ الْمَبِيتَ ، وَإِذَا لَمْ يَذْكُرْ اللَّهَ عِنْدَ طَعَامِهِ ، قَالَ : أَدْرَكْتُمْ الْمَبِيتَ وَالْعَشَاءَ (رواه مسلم)**

ترجمه : كله چې سړى خپل كور ته ننوزي په ننوتلو كې الله ⎘ ياد كړي او كله چې خوراک كړي هلته الله ⎘ ياد كړي نو شيطان وايي (خپلو نورو ملګرو ته) : دلته نه ستاسې د شپې ځاى شته او نه دلته ستاسې لپاره خوراک شته او كله چې انسان كور ته ننوزي په ننوتلو كې الله ⎘ ياد نه كړي شيطان وايي د شپې ځاى مو پيدا كړو او كله چې د خوراک په وخت كې الله ⎘ ياد نه كړي نو بيا شيطان وايي د شپې ځاى مو هم پيدا كړو او خوراک مو هم پيدا كړو .

## بسم الله د کور نه د وتلو په وخت

د حضرت انس ابن مالک ❼ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ☸ فرمایل :

**مَنْ قَالَ إِذَا خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ : بِسْمِ اللَّهِ ، تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ ، لا حَوْلَ وَلا قُوَّةَ إِلا بِاللَّهِ ، يُقَالُ لَهُ : كُفِيتَ وَوُقِيتَ وَتَنَحَّى عَنْهُ الشَّيْطَانُ**

ترجمه : چا چې د کور نه د وتلو په وخت کې وویل : **بِسْمِ اللَّهِ ، تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ ، لا حَوْلَ وَلا قُوَّةَ إِلا بِاللَّهِ** ده ته ویل کیږي چې بس د شو او وساتل شوې او شیطان د هغه څخه په کناره کې شي .

د حضرت ام سلمة رضی الله عنها څخه روایت دی هغه فرمایي : رسول الله ☸ به چې کله له کور نه وتلو فرمایل به یې : **بِسْمِ اللَّهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ اللَّهُمَّ إِنَّا نَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ نَزِلَّ أَوْ نَضِلَّ أَوْ نَظْلِمَ أَوْ نُظْلَمَ أَوْ نَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيْنَا**

ترجمه : شروع د الله ☐ په نوم کوم په الله ☐ مې توکل کړی دی ای ربه مونږ په تا باندې پناه غواړو لدې نه چې مونږ و ښویږو او یا گمراه شو یا ظلم وکوو او یا په مونږ ظلم وکول شي او یا جاهلان شو او یا مو څوک جاهلان کړي .

د حضرت ابي سعيد الخدري ❼ نه روايت دی هغه فرمايي حضرت جبريل عليه السلام رسول الله ☸ ته راغلو ورته ويل يې: ته نا جوړ يې؟ هغه ورته وويل: هو! بيا جبريل عليه السلام ورته وويل: بِاسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ يُؤْذِيكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ نَفْسٍ أَوْ عَيْنِ حَاسِدٍ اللَّهُ يَشْفِيكَ بِاسْمِ اللَّهِ أَرْقِيكَ (رواه مسلم)

ترجمه: د الله ▣ په نوم زه تا دموم له هر هغه شي څخه چې تاته ضرر درکوي د شر د هر نفس نه او د شر د سترګو د کينه کونکي څخه الله ▣ تاته شفا درکوي زه د الله ▣ په نوم تا دموم.

د حضرت عثمان ابن العاص ❼ نه روايت دی هغه فرمايي:

أَنَّهُ شَكَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَعًا يَجِدُهُ فِي جَسَدِهِ مُنْذُ أَسْلَمَ ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ضَعْ يَدَكَ عَلَى الَّذِي تَأَلَّمَ مِنْ جَسَدِكَ وَقُلْ : بِاسْمِ اللَّهِ ثَلَاثًا وَقُلْ سَبْعَ مَرَّاتٍ : أَعُوذُ بِاللَّهِ وَقُدْرَتِهِ مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ وَأُحَاذِرُ

ترجمه: ده رسول الله ته شکايت وکولو د هغه درد نه چې دی په خپل بدن کې د هغه وخت نه محسوس کولو چې ده اسلام راوړی وو نو رسول الله ☸ (د علاج لپاره) ورته وويل: کوم ځای د ې

چې خوږېږي په هغه ځای باندې لاس کېږده او وواېه بسم الله درې ځله او بيا اوه ځله **وواېه**

أَعُوذُ بِاللَّهِ وَقُدْرَتِهِ مِنْ شَرِّ مَا أَجِدُ وَأُحَاذِرُ .(رواه مسلم)

## بسم الله د ذبح په وخت کې

د حضرت جندب بن سفيان البجلي ❼ نه روايت دی هغه فرمايي :

**ضَحَّيْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُضْحِيَةً ذَاتَ يَوْمٍ ، فَإِذَا أُنَاسٌ قَدْ ذَبَحُوا ضَحَايَاهُمْ قَبْلَ الصَّلاةِ ، فَلَمَّا انْصَرَفَ رَآهُمْ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُمْ قَدْ ذَبَحُوا قَبْلَ الصَّلاةِ فَقَالَ : مَنْ ذَبَحَ قَبْلَ الصَّلاةِ فَلْيَذْبَحْ مَكَانَهَا أُخْرَى ، وَمَنْ كَانَ لَمْ يَذْبَحْ حَتَّى صَلَّيْنَا فَلْيَذْبَحْ عَلَى اسْمِ اللَّهِ (صحيح البخاري)**

ترجمه : مونږ د رسول الله ☸ سره يوه ورځ قرباني کوله چې خلکو بيا خپلې قربانۍ له مانځه څخه وړاندې حلالې کړې کله چې رسول الله ☸ را وګرځېدو ويې ليدل چې خلکو خپل مالونه حلال کړي دي رسول الله ☸ و فرمايل : چا چې تر مانځه څخه وړاندې خپلې قربانۍ حلالې کړې دي نو هغوی دې دهغې په ځای بله حلاله کړي او هغه چا چې نه دي حلالې کړې هغوی د د الله ▭ د نوم په

اخستلو سره خپل مالونه حلال کړي (د مانځه نه وروسته)

## بسم الله د خوب په وخت کې

د حضرت ابي هريره ❼ نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله ☸ فرمايل :

ذَا أَوَى أَحَدُكُمْ إِلَى فِرَاشِهِ : فَلْيَأْخُذْ دَاخِلَةَ إِزَارِهِ فَلْيَنْفُضْ بِهَا فِرَاشَهُ ، وَلْيُسَمِّ اللَّهَ ، فَإِنَّهُ لا يَعْلَمُ مَا خَلَفَهُ بَعْدَهُ عَلَى فِرَاشِهِ ، فَإِذَا أَرَادَ أَنْ يَضْطَجِعَ فَلْيَضْطَجِعْ عَلَى شِقِّهِ الأَيْمَنِ وَلْيَقُلْ : سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ رَبِّي بِكَ وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ أَرْفَعُهُ إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَاغْفِرْ لَهَا وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ (رواه البخاري)

ترجمه : کله چې په تاسې کې کوم يو خپلې بسترې ته ورشي نو خپل لنګ د ننه يو طرف نه ونيسي او خپله بستره د وربانديې تک وهي او بسم الله د ووايي ځکه دى نه پوهيږي چې دده څخه وروسته (کله چې دى ترينه پاڅېدلى وو) دده په بستره کې څه شى وو او کله يې چې غوښتل چې څملي نو په ښي طرف د څملي او ودې وايي سبحانکه اللهم .... (پاکې ده تا لره اى زما ربه ستا په نوم مې خپل اړخ کېښود او ستا په نوم به يې پورته کوم که تا زما نفس د ځان سره حصار کړو (وروسته ددې چې زما د ويده کېدو په وخت کې

هغه تاته درغلو) نو ته زما نفس ته بښنه وکوه او که دې را ولېږلو بیا یې په هغه ډول حفاظت او ساتنه وکوه په کومه توګه چې ته د نېکو بندګانو ساتنه کوې.

## بسم الله د ښکار په وخت کې

د حضرت ابي ثعلبة ❼ نه روایت دی هغه فرمایي :

أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ : يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتَابِ نَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ ، وَأَرْضِ صَيْدٍ أَصِيدُ بِقَوْسِي وَأَصِيدُ بِكَلْبِي الْمُعَلَّمِ وَالَّذِي لَيْسَ مُعَلَّمًا ، فَأَخْبِرْنِي مَا الَّذِي يَحِلُّ لَنَا مِنْ ذَلِكَ فَقَالَ : أَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكَ بِأَرْضِ قَوْمٍ أَهْلِ الْكِتَابِ تَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ فَإِنْ وَجَدْتُمْ غَيْرَ آنِيَتِهِمْ فَلا تَأْكُلُوا فِيهَا ، وَإِنْ لَمْ تَجِدُوا فَاغْسِلُوهَا ثُمَّ كُلُوا فِيهَا ، وَأَمَّا مَا ذَكَرْتَ أَنَّكَ بِأَرْضِ صَيْدٍ فَمَا صِدْتَ بِقَوْسِكَ فَاذْكُرْ اسْمَ اللَّهِ ثُمَّ كُلْ ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الْمُعَلَّمِ فَاذْكُرْ اسْمَ اللَّهِ ثُمَّ كُلْ ، وَمَا صِدْتَ بِكَلْبِكَ الَّذِي لَيْسَ مُعَلَّمًا فَأَدْرَكْتَ ذَكَاتَهُ فَكُلْ (رواه البخاري)

ترجمه : زه رسول الله ﷺ ته راغلم ورته مې وویل : یا رسول الله ﷺ مونږ د اهل کتابو په زمکه کې اوسېږو (پداسې ځای کې اوسېږو چې هلته اکثر خلک اهل کتاب دي) د هغوی په لوښیو کې خوراک

کوو او مونږ د ښکار په زمکه کې یو ز ه پدې خپله لینده باندې ښکار کوم او یا د خپل تربیه شوي او یا بې تربیې سپي په واسطه ښکار کوم ماته وو ایاست چې پدې کې کوم ماته (د خوراک لپاره) روا دي؟ رسول الله ﷺ راته وویل : دا چې تا وویل تاسې د اهل کتابو په زمکه کې اوسیږئ نو که د دوی د لوښو نه بغیر د نور لوښي پیدا کړل نو بیا د دوی په لوښو کې خوراک مه کوئ او که مو نور لوښي پیدا نه کړل نو بیا یې ووینځئ او خوراک پکې وکوئ او تا چې د ښکار په اړه وویل نو چې ته په خپله (د غېشوپه) لینده ښکار کوې نو د الله ﷻ نوم پرې یاد کړه (چې کله یې ولې) بیا یې وخوره او هغه چې د تربیه شوي سپي په واسطه یې ښکار کوې نو بسم الله پرې ووایه (کله چې سپی ورپسې پرېږدې) او بیا یې وخوره او هغه چې بې تربیې سپي درته ښکار کړي دي نو که تا هغه حلال کړلی شوای نو هغه بیا وخوره (او که تاته د ر رسېدلو وړاندې هغه ښکار مړ وو بیا یې مه خوره)

## بسم الله د جماع په وخت کې

لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَتَى أَهْلَهُ قَالَ : بِاسْمِ اللَّهِ ، اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبْ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا فَقُضِيَ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ لَمْ يَضُرُّهُ (رواه البخاري)

ترجمه : پتاسې کې چې يو خپل اهل ته راتلو نو ودې وايي بسم الله .... (شروع د الله په نوم کوم ای الله شيطان له مونږ څخه په يو طرف کې (لرې) وساته او شيطان له هغه شي څخه لرې وساته چې تا ماته راکړي دي) نو که ددې جماع نه الله ورته اولاد ورکړو شيطان به ور ته ضرر نه رسوي .

## بسم الله په سپرلۍ د سپرېدلو په وخت

د حضرت علي بن ربيعة ❼ نه روايت دی هغه فرمايي

شَهِدْتُ عَلِيًّا أُتِيَ بِدَابَّةٍ لِيَرْكَبَهَا فَلَمَّا وَضَعَ رِجْلَهُ فِي الرِّكَابِ قَالَ بِسْمِ اللَّهِ ثَلاثًا ، فَلَمَّا اسْتَوَى عَلَى ظَهْرِهَا قَالَ : الْحَمْدُ لِلَّهِ ، ثُمَّ قَالَ : سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ ، ثُمَّ قَالَ : الْحَمْدُ لِلَّهِ ثَلاثًا وَاللَّهُ أَكْبَرُ ثَلاثًا سُبْحَانَكَ إِنِّي قَدْ ظَلَمْتُ نَفْسِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلا أَنْتَ ثُمَّ ضَحِكَ ، قُلْتُ : مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ قَالَ : رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ كَمَا صَنَعْتُ ثُمَّ ضَحِكَ فَقُلْتُ مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ : إِنَّ

رَبَّكَ لَيَعْجَبُ مِنْ عَبْدِهِ إِذَا قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي إِنَّهُ لا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ غَيْرُكَ

ترجمه : ما حضرت علي ❼ وليدو چې سپرلۍ ورته راوستل شوه چې دى وربانديې سپور شي کله يې چې پښه په رکاب (پايدان) کې کېښوده درى ځله يې بسم الله وويله کله چې وربانديې سپور شو بيا يې وويل الحمد لله بيا يې وويل : سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ بيا يې درى ځله الحمد لله وويله او درى ځله يې الله اکبر وويل بيا يې وويل : سُبْحَانَكَ .... (پاکې ده تا لره بېشکه ما ظلم کړى دى په خپل ځان ماته بښنه وکوه بښنه صرف ته کوې بيا يې وخندل ما ورڅخه پوښتنه کوله : ولې د وخندل؟ ده وويل ما رسول الله ☸ وليدو چې همداسې کارونه يې وکول لکه ما چې وکول بيا يې وخندل ما ورڅخه پوښتنه وکوله : يا رسول الله ☸ ولې د وخندل؟ هغه راته وويل : بېشکه ستا رب تعجب کوي (خوشيږي يې) چې کله يې بنده ووايي اى الله ماته بښنه وکوه او ستا نه بغير بل څوک بښنه کونکى نشته .

## بسم الله د مړي په قبر کې د کېښودلو په وخت

د حضرت ابن عمر ❼ نه روايت دی هغه فرمايي :
**كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُدْخِلَ الْمَيِّتُ الْقَبْرَ قَالَ بِسْمِ اللَّهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللَّهِ (رواه ابن ماجه)**
ترجمه : کله به چې مړی قبر ته داخل کړل شو رسول الله ☸ به ویل بسم الله ...

بسم الله د لیک په شروع کې

د حضرت ابن عباس ❼ نه روايت دی چې حضرت ابو سفيان ❼ ده ته وويل :
**فَدَخَلْنَا عَلَى هِرَقْلَ فَأَجْلَسَنَا بَيْنَ يَدَيْهِ ثُمَّ دَعَا بِكِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا فِيهِ : "بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ" مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ سَلَامٌ عَلَى مَنْ اتَّبَعَ الْهُدَى أَمَّا بَعْدُ (رواه البخاري)**
ترجمه : مونږ د هرقل مجلس ته ورننوتلو بيا هغه مونږ په خپل مخ کې کېنولو بيا يې امر وکولو چې د رسول الله ☸ له لوري راغلی ليک راوړئ بيا په هغه کې وو بسم الله ... (شروع کوم د الله ▭ په نوم چې مهربان دی د محمد رسول الله ☸ نه دا ليک دی هرقل ته چې د روم بادشاه دی سلام د په هغه چا باندې وي چې د سمې لارې متابعت يې کړی دی .. اما بعد .

بسم الله د ځان ساتنې لپاره

د حضرت عثمان ابن عفان ❼ نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله ﷺ فرمایل :

مَا مِنْ عَبْدٍ يَقُولُ فِي صَبَاحِ كُلِّ يَوْمٍ وَمَسَاءِ كُلِّ لَيْلَةٍ : بِسْمِ اللَّهِ الَّذِي لا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي الأَرْضِ وَلا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ثَلاثَ مَرَّاتٍ لَمْ يَضُرَّهُ شَيْءٌ

ترجمه : هربنده چې د هرې ورځې په سبا او د هرې شپې په ماښام کې درې ځله ووایي : **بِسْمِ اللَّهِ الَّذِي لا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي الأَرْضِ وَلا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ** ده ته به هېڅ شی ضرر ونه رسوي.

# بسم الله د پېريانو څخه د پردې لپاره

د حضرت علي ابن ابي طالب ❼ نه روايت دى هغه فرمايي : رسول الله ﷺ فرمايل :

**سَتْرُ مَا بَيْنَ أَعْيُنِ الْجِنِّ وَعَوْرَاتِ بَنِي آدَمَ إِذَا دَخَلَ أَحَدُهُمْ الْخَلاءَ أَنْ يَقُولَ بِسْمِ اللَّهِ (رواه الترمذي)**

ترجمه : د انسان او د پېريانو د سترګو په مينځ کې پرده داده چې کله انسان بيت الخلاء ته ننوزي نو ووايي بسم الله .

نو ددې امله چې انسان کله جامې وباسي او يا تشناب ته ځي نو ددې لپاره چې د پېريانو له سترګو څخه پټ شي نو بسم الله د ووايي بيا به يې هغوى نه ويني .



# بـــسم الله جـومـات تــه د نــنـوتــلـو پـه وخت

حضرت فـاطمه رضی الله عـنـهـا فـرمـایـي :

**كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْمَسْجِدَ يَقُولُ : بِسْمِ اللَّهِ وَالسَّلامُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ ، وَإِذَا خَرَجَ قَالَ : بِسْمِ اللَّهِ وَالسَّلامُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي وَافْتَحْ لِي أَبْوَابَ فَضْلِكَ**

تـرجمه : رسول الله ﷺ بـه چې کـلـه جـومـاتـه تـه نـنـوتـلـو نـو ويـل بـه یـې بـسم الله .... (شـروع کـوم پـه نـامـه د الله ﷻ او سلام د وي پـه رسول الله ﷺ بـانـدې ای الله ﷻ مـاتـه زمـا گـنـاهـونـه را وبـښه او مـاتـه د خپـل رحمت دروازې را خلاصې کړه ) او کـلـه بـه چې وتـلـو نـو ويـل بـه یـې : بِسْمِ ٱللَّه .... (شروع کـوم د الله ﷻ پـه نـوم او سلام د وي پـه رسول الله ﷺ بـانـدې ای الله ﷻ مـاتـه زمـا گـنـاهـونـه را وبـښه او مـاتـه د خپـل فضل دروازې را خلاصې کړه ) .

بـسم الله ددې پـورتـه د مـثـال پـه تـوگـه یـاد کـړل شـويـو کـارونـو پـه شروع کې او نـورو ځـایـونـو کې مـونـږ ددې لـپـاره وایـو چې ددې کـار پـه بـرکـت کې زیـادت وشي او الله ﷻ یـې مـبـارک کـړي خیـر پـکې زیـات شي او د کـار کـول او ختمـول اسـان شي د حضرت عبد الله ابـن عبـاس ❼ نـه روایـت د ی چې حضرت عـثـمـان ابـن

عفان ❼ د رسول الله ﷺ نه د بسم الله په اړه پوښتنه وکوله هغه ورته وويل :

هو اسم من أسماء الله وما بينه وبين اسم الله الأكبر إلا كما بين سواد العينين وبياضهما من القرب

ترجمه : د الله له نومونو څخه يو نوم دی ددې او د الله ﷻ د لوی اسم (اسم اعظم، اسم اکبر) په مينځ کې دومره نږدې والی دی لکه د سترګې د سپينو او تورو په مينځ کې چې څومره دی .

## د الحمد لله (سورة الفاتحة) فضيلت

رسول الله ﷺ د سورة الفاتحة په اړه فرمايلي دي :

فاتحه الكتاب شفاء من كل داء

ترجمه : سورة فاتحه (الحمد لله) د هرې بيمارۍ علاج دی (چې بيمار انسان او يا دردمند ځای پدې باندې دم کړل شي او يا پدې سره کوم شی دم کړل شي هغه په بيمار و خوړل شي الله ﷻ ورته شفاء ورکوي.

فاتحة الكتاب أنزلت من كنز تحت العرش

ترجمه : سورة فاتحه د هغه خزانې څخه نازله شويده چې تر عرش لاندې ده .

## سورة البقرة

د سورة البقرة په اړه رسول الله ﷺ فرمايي :
إن لكل شىء سنامة و سنام القرآن البقرة من قرأها فى بيته ليلاً لم يدخله شيطان ثلاث ليال , و من قرأها فى بيته نهاراً لم يدخله شيطان ثلاثة أيام
ترجمه : بېشکه په هر شي کې يو بوکام (لوړ) ځای وي د قرآن کريم بوکام سورة بقرة ده چا چې په کور کې يوه شپه تلاوت کړو هغه کور ته به شيطان تر دريو شپو پورې نه ورننوزي او چا چې په کور کې د ورځې تلاوت کړو هغه کور ته به شيطان تر دريو ورځو پورې نه ور ننوزي .

## آية الكرسي

سورة البقرة آية ٢٥٥

**اللَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ۚ لاَ تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَلاَ نَوْمٌ ۚ لَهُ مَا فِي السَّمَوَاتِ وَمَا فِي الأَرْضِ ۗ مَن ذَا الَّذِي يَشْفَعُ عِندَهُ إِلاَّ بِإِذْنِهِ ۚ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۖ وَلاَ يُحِيطُونَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهِ إِلاَّ بِمَا شَآءَ ۚ وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمَوَاتِ وَالأَرْضَ ۖ وَلاَ يَؤُودُهُ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ**

دآ آيت په سورة بقرة کې يو آيت دی چې آية الکرسي ورته ويل کيږي دهغه د فضيلت په اړه رسول الله ﷺ فرمايي :

سور البقرة فيها اية سيدة اى القرآن لا تقرأ فى بيت و فية شيطان إلا خرج منه : اية الكرسى

ترجمه : په سورة البقرة کې يو آيت دى چې د قرآن سيدة آيت دى هغه چې په کوم کور کې تلاوت شي شيطان ورڅخه وزي : آية ا لکرسي

## د سورة البقرة آخري آيتونه

سورة البقرة آية ٢٨٥ او ٢٨٦

آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مِن رَّبِّهِ وَالْمُؤْمِنُونَ كُلٌّ آمَنَ بِاللّهِ وَمَلآئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ لاَ نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّن رُّسُلِهِ وَقَالُواْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ (٢٨٥) لاَ يُكَلِّفُ اللّهُ نَفْسًا إِلاَّ وُسْعَهَا لَهَا مَا كَسَبَتْ وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ رَبَّنَا لاَ تُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا رَبَّنَا وَلاَ تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِنَا رَبَّنَا وَلاَ تُحَمِّلْنَا مَا لاَ طَاقَةَ لَنَا بِهِ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَآ أَنتَ مَوْلاَنَا فَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ

ددې دوو آيتونو په اړه رسول الله ﷺ فرمايي :

إن الله ختم سورة البقرة بأيتين أعطانيهما من كنزه الذى تحت العرش , فتعلموهما و علموهن

نساءكم و أولادكم فإنهما صلاه و قراءة و دعاء

ترجمه : بېشكه الله ختمه كړېده سورة بقرة په دوو آيتونو باندې چې الله ماته دهغه خزانې څخه راكړې دي چې تر عرش لاندې ده هغه زده كړئ او خپلو ښځو ته يې هم ور زده كړئ او خپلو اولادونو ته يې هم ور زده كړئ ځكه دا مونځ هم دی قراءة هم دی او دعا هم ده .



# سورة آل عمران

دا سورة په دريمه پاره کی دی
سورة آل عمران آية ۱۸ او ۱۹

**شَهِدَ اللَّهُ أَنَّهُ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ وَالْمَلائِكَةُ وَأُوْلُواْ الْعِلْمِ قَائِمًا بِالْقِسْطِ لاَ إِلَهَ إِلاَّ هُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الإِسْلاَمُ**

رسول الله ☸ ددې پورتني يونيم آيت په اړه فرمايي څوک چې دا تلاوت کړي او ددېنه وروسته بيا ووايي :

و أنا اشهد بما شهد الله به و أستودع الله شهادة و هی لی عنده وديعه

زه هم د هغه څه ګواهي ورکوم چې الله ⊡ ورکړېده او دا خپله ګواهي د الله ⊡ سره د امانت په توګه اېږدم دا به له الله ⊡ سره زما امانت وي .

نو د قيامت په ورځ به دا بنده راوستل شي ورته به وويل شي دې بنده لما سره يو عهد کړی وو (لما سره يې يو عهدد امانت په توګه اېښی وو) زه ددې ډېر لائق يم چې په خپل عهد باندې وفا وکوم دا زما بنده جنت ته ننباسئ .

## سورة الاسراء (بني اسرائيل)

سورة الاسراء آية ١١١

وَ قُلِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِىْ لَمْ يَتَّخِذْ وَلَدًا وَّ لَمْ يَكُنْ لَّهٗ شَرِيْكٌ فِى الْمُلْكِ وَ لَمْ يَكُنْ لَّهٗ وَلِىٌّ مِّنَ الذُّلِّ وَ كَبِّرْهُ تَكْبِيْرًا (١١١)٪

ددې آيت په اړه رسول الله ﷺ فرمايي چې دا د عزت آيت دى

## سورة الكهف

دا سورة په ١٥ پاره كى دى

د سورة كهف د لسو اولنيو ايتونو په اړه رسول الله ﷺ فرمايي :

من حفظ عشر أيات من أول سورة الكهف عصم من فتنة الدجال

ترجمه : چا چې د سورة كهف اولني لس آيتونه ياد كړل هغه به د دجال له فتنې څخه وساتل شي .

رسول الله ﷺ د سورة كهف په اړه فرمايي :

سورة الكهف تدعى في التوراة الحائلة تحول بين قارئها و بين النار

ترجمه : په توراة كې سورة كهف ته الحائلة ويل كيږي دا د لوستونكي او ا ور په مينځ كې حائل (پرده) كيږي .

دسورة کهف د جُمعې د ورځې سره خاص مناسبت دی پدې ورځ کې ددې سورت تلاوت ډېر زيات ثواب لري رسول الله ﷺ پدې اړه فرمايي :

من قرأ سورة الكهف في يوم الجمعة أضاء له من النور ما بين الجمعتين

ترجمه : چا چې سورة کهف د جمعې په ورځ تلاوت کړو تر بلې جُمعې پورې به دا وخت ورته له نور نه ډک کړي .

## سورة النور

دا سورة په آتلسمه پاره کی دی

سورة النور آية ٣٥

اَللّٰهُ نُوۡرُ السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ؕ مَثَلُ نُوۡرِهٖ كَمِشۡكٰوةٍ فِيۡهَا مِصۡبَاحٌ ؕ اَلۡمِصۡبَاحُ فِىۡ زُجَاجَةٍ ؕ اَلزُّجَاجَةُ كَاَنَّهَا كَوۡكَبٌ دُرِّىٌّ يُّوۡقَدُ مِنۡ شَجَرَةٍ مُّبٰرَكَةٍ زَيۡتُوۡنَةٍ لَّا شَرۡقِيَّةٍ وَّ لَا غَرۡبِيَّةٍ ۙ يَّكَادُ زَيۡتُهَا يُضِىۡٓءُ وَ لَوۡ لَمۡ تَمۡسَسۡهُ نَارٌ ؕ نُوۡرٌ عَلٰى نُوۡرٍ ؕ يَهۡدِى اللّٰهُ لِنُوۡرِهٖ مَنۡ يَّشَآءُ ؕ وَ يَضۡرِبُ اللّٰهُ الۡاَمۡثَالَ لِلنَّاسِ ؕ وَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَىۡءٍ عَلِيۡمٌ (۳۵)

د سورة النور ددې آيت په اړه رسول الله ﷺ فرمايي :

فأقرأوها و اسألوا الله نورها و بركتها

ترجمه : دا ولولئ او د الله ☐ نه ددې د نور او برکت سوال وکوئ .

## سورة يس

دا سورة په ۲۳ پاره کی دی

په حديثونو کې د سورة يسين ډېر فضيلتونه راغلي دي په يوه حديث کې رسول الله ﷺ فرمايي :

إن لكل شيء قلباً و قلب القرآن يس و من قرأ يس كتب الله له بقرائتها قراءة القرآن عشر مرات

ترجمه : بېشکه د هرشي لپاره زړه وي او د قرآن زړه سورة يس دی چا چې دا سورة تلاوت کړو الله ☐ ورته ددې په قرائت د لس ځله ټول قرآن ختم ثواب ورکوي .

## سورة الدخان

سورة الدخان په ٢٥ پاره کې دی

د سورة الدخان په اړه رسول الله ﷺ فرمايي :

من قرأ ( حم ) الدخان فی لیله أصبح یستغفر له سبعون الف ملك

ترجمه : چا چې سورة دخان د شپې تلاوت کړو تر سبا پورې د هغه کس لپاره اويا زره ملائکې بښنه غواړي .

## سورة الواقعة

سورة واقعه په ٢٧ پاره کې دی

رسول الله ﷺ ددې سورة په اړه فرمايي : من قرأ سورة الواقعة کل لیله لم تصبه فاقة ابداً

ترجمه : چا چې سورة واقعه هره شپه تلاوت کړو ده ته به کله هم نيستي او غربت ور ورنه رسيږي .

# سورة الحشر

سورة حشر په ۲۸ پاره کې دی
د سورة حشر آخرني ۲ آيتونه

هُوَ اللّٰهُ الَّذِیْ لَاۤ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ اَلْمَلِكُ الْقُدُّوْسُ السَّلٰمُ الْمُؤْمِنُ الْمُهَيْمِنُ
الْعَزِيْزُ الْجَبَّارُ الْمُتَكَبِّرُ ؕ سُبْحٰنَ اللّٰهِ عَمَّا يُشْرِكُوْنَ (۲۳) هُوَ
اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْاَسْمَآءُ الْحُسْنٰى ؕ يُسَبِّحُ لَهٗ مَا
فِى السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۚ وَ هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ (۲۴)

ددې دوو آيتونو د فضيلت په اړه رسول ﷺ فرمايلي دي :

**مَنْ قَرَأَ خَواتِيمَ الحَشْرِ فِي لَيْلٍ أَوْ نَهارٍ فَمَات فِي ذلك اليومِ أو الليلة فقد ضَمِنَ الله لَه الجَنّة**

ترجمه : چا چې د سورة حشر وروستني آيتونه تلاوت کړل (تفسير قرطبي ليکلي دي چې مطلب يې دا پورتني دوه آيتونه دي) په شپه او يا ورځ کې نو که پدې شپه او ورځ کې وفات شو الله ورته د جنت ضمانت ورکوي.

## سورة الملك (تبارک الذي)

سورة الملک د ۲۹ پارې په شروع کې دی

رسول الله ﷺ ددې سورة په اړه فرمايي :

إن سورة من القرآن ثلاثين أية شفعت لرجل حتى غفرله و هى تبارك الذى بيده الملك

ترجمه : بېشکه په قرآن کريم کې يو سورة دی دېرش آيتونه لري د انسان لپاره تر هغه وخته پورې شفاعت کوي ترڅو هغه ته بښنه وشي او هغه سورة تبارک الذي بيده الملک دی .

## سورة القدر

سورة القدر په دېرشمه پاره کې دی

رسول الله ﷺ ددې سورة په اړه فرمايلي دي :

من قرأ إنا أنزلناه فى ليله القدر عدل ربع القرآن

ترجمه : چا چې دا سورة د قدر په شپه (ليلة القدر) کې تلاوت کړو لکه د قرآن کريم څلورمه برخه يې چې تلاوت کړې وي (يعنې که څوک يې څلور ځله تلاوت کړي لکه ټول قرآن کريم يې چې ختم کړی وي .

## سورة الزلزلة

دا سورة په دېرشمه پاره کې دی

ددې سورة او څو نورو سورتونو د فضيلت په اړه

رسول الله ﷺ فرمايي :

إذا زلزلت .. تعدل نصف القرآن و قل يا أيها الكافرون .. تعدل ربع القرآن و قل هو الله أحد .. تعدل ثلث القرآن

ترجمه : اذا زلزلت سورة د نيم قرآن كريم د تلاوت ثواب لري او قل يا يا أيها الكافرون د قرآن كريم د څلورمې برخې د تلاوت سره برابر ثواب لري او قل هو الله أحد د قرآن كريم د دريمې برخې د تلاوت سره برابر ثواب لري .



# سورة الاخلاص (قل هو الله احد)

ددې سورة په فضيلت كې رسول الله ﷺ فرمايي :
من قرأ قل هو الله أحد ...مائة مرة غفر الله له خطيئتة خمسين عاماً خالصاً ما أجتنب خصالاً اربعاً : الدماء و الأموال و الفروج و الأشرب
ترجمه : چا چې قل هو الله احد سل ځله تلاوت كړو الله  به ورته د پنځوسو كلونو گناهنه معاف كړي ترڅو چې ده له څلورو شيانو څخه ځان ساتلى وي (چې دده په گناهونو كې دا څلور ډوله گناهونه نه وي) قتل ، غلا، زنا، شراب څښل .

## معوذتين

د قرآن كريم دوه آخري سورتونه
ددې دوو سورتونو په فضيلت كې رسول الله ﷺ حضرت عقبة رضي الله عنه ته فرمايي : يا عقبة ! ألا أعلمك خير سورتين قرئتا : قل أعوذ برب الفلق و قل أعوذ برب الناس : يا عقبة : اقرأهما كلما نمت و قمت : ما سأل سائل و لا استعاذ مستعيذ بمثلهما
ترجمه : اى عقبة زه تاته دوه بهترين سورتونه چې تر اوسه تلاوت شوي دي ونه شيم قل أعوذ برب الفلق و قل أعوذ برب الناس اى عقبة كله چې ويده كېدې او كله چې پاڅېدې دا دواړه تلاوت كوه تر اوسه پورې كوم سوال كونكي ددې په ډول مبارك

شي باندې سوال کړی دی او نه تر اوسه پورې کوم پناه غوښتونکي پداسې مبارک شي سره پناه غوښتې ده .

## د قرآن کریم خصوصیات

قرآن کریم د الله ﷻ هغه کتاب دی چې پدې ډول کتاب نه دده څخه مخکې په دنیا کې موجود وو او نه به ددې څخه وروسته موجود شي او نه ددې قرآن مقابله په هغه وخت کې چې کولی شوای چې عربي ادب اوج ته رسېدلی وو او نه به یې ددې نه وروسته څوک وکوي قرآن کریم څه خصوصیات لري چې د مثال په ډول یې یو څو په لاندې توګه دي .



## لـمړی خصوصیت

(ساتـل شوی دی )

قـرآن کـریـم یـوازیـنـی هغـه کـتـاب دی چې لـه هر ډول تـحریـف ، بـدلـون ، کـمښت، زیـادت نـه یـې حفـاظت شوی دی او الله ☐ ددې د حفـاظت پـه اړه فـرمـایـي چې ددې ساتـنـه مـونـږ پـخپـلـه کـوو الله ☐ فـرمـاي :

سورة حجر آیـة ۹

اِنَّا نَحۡنُ نَزَّلۡنَا الذِّكۡرَ وَ اِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوۡنَ (۹)

تـرجمـه : بـېشکـه مـونـږ دا پـنـد (قـرآن ) نـازل کـړی دی او مـونـږ یـې ساتـنـه کـوو .

د قـرآن کـریـم لـه تـغیـر تـبـدیـل زیـادت او نـقـصان څخه د ساتـنې لـپاره څو اسبـاب دي .

الـف : قـرآن پـداسې قـوم بـانـدې اول نـازل شو چې هغـوی د مضمـونـونـو د یـادولـو سره بـلـد وو پـه دوی کې عـادت وو چې اوږدې اوږدې شعـري قـصیـدې بـه یـې یـادولـې نـو چې کـلـه قـرآن کـریـم نـازلـېدو لـه مخې سره بـه یـې مسلـمـانـانـو هغـه یـادولـو او چې کـلـه قـرآن مـکمـل شو پـه هغـه وخت کې هم ګڼ شمـېر حـافـظـان مـوجـود وو .

ب : پـه اسلام کې داسې شیـوخ او استـاذان دي چې هغـوی ددې کـو ښښ کـوي چې ډیـر خـلـک د قـرآن حـافـظـان کـړي او ډیـرو خـلـکـو تـه یـې ور یـاد کـړي ددې امـلـه دا د حفـظ سلـسلـه لـکـه څنـګـه چې د صحـابـه

وو پـه وخت کې وه پـه همدې ډول تـر اوسه پـورې روانـه ده او خلک يې يـادوي .

ج : الله ☐ قـرآن کـريـم د حفـظ لـپاره اسانـه کړی دی چې هرڅوک کـوښښ وکـوي د قـرآن کـريـم يـوه بـرخه او يـو سورت پـه اسانـه سره يـادولـی شي ډېـر داسې خلک شتـه چې د هغوی هېڅ ډول تـعلـيم نـشته لـکن سورة يـس او تـبارک الـذي او نـور سورتـونـه يـې يـاد وي او د همدې املـه دي چې د قـرآن کـريـم حافـظان ډېـر زيـات دي او پـه بـل ديـن کې داسې ډېـر کم بـلکه بـالـکل نـه پـيدا کـيږي چې پـداسې مـنظمه تـوګه يـې خپـل اسمانـي کـتاب يـاد وي لـکه زمـونـږ د حافـظانـو چې يـاد وي .

الله ☐ ددې کـتـاب حفـاظت ځکه پـه خپـلـه ذمـه اخستـی دی چې دا د الله ☐ لـه لـوري نـه ورستـی کـتاب دی او ددیـنـه وروستـه بـل کـتـاب نـه راځي نـو بـیابـاید آخري مـسلـمـان تـه هم دا کـتـاب پـه هغـه شکل کې ور ورسيـږي چې پـه کـوم شکل کې نـازل شوی دی .

## دوهم خصوصیت

## (د پخوانیو کتابونو ساتونکی دی )

د قرآن کریم دوهم خصوصیت دادی چې دا د ټولو کتابونو په آخر کې نازل شوی دی د کتابونو د نزول سلسله وربانديې ختمه شویده او دې کتاب د پخوانیو کتابونو مضامین ساتلي دي الله ﷻ پدې اړه فرمايي :

سورة المائدة آية ٤٨

وَ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡکَ الۡکِتٰبَ بِالۡحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَیۡنَ یَدَیۡہِ مِنَ الۡکِتٰبِ وَ مُہَیۡمِنًا عَلَیۡہِ فَاحۡکُمۡ بَیۡنَہُمۡ بِمَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰہُ وَ لَا تَتَّبِعۡ اَہۡوَآءَہُمۡ عَمَّا جَآءَکَ مِنَ الۡحَقِّ

ترجمه : او نازل کړی دی (لېږلی ) دی مونږ تاته (ای محمده) کتاب (قرآن ) په حقه سره چې تصدیق کونکی (حق ګڼونکی) دی د هغه چې (نازل شوی دي) په مخ دده کې له کتابونو څخه او ساتونکی دی پر (مضامینود ) هغه (یعني شاهد دی په حقانیت د جنس د هغه کتاب) .

معنی دا چې دا کتاب هغه شیانو لره شامل دی چې په هغه کتابونو کې وو او په هغه باندې زیاد نوي شیان هم پکې دي او هغه شیان چې په مخکنیو کتابونو کې وي که د قرآن سره خلاف وي نو یا خو به هغه نسخ شوي وي او یا به الله ﷻ نه وي

نازل کړي هغه کتابونه له تحریف څخه پاک نه وو خلکو پکې ور لیکلي دي نو په هغه پخوانیو کتابونو کې چې کوم د شریعت اصول دي دا کتاب (قرآن ) دهغه ساتنه کوي نو د ټولو تېرو کتابونو څخه دا کتاب ډېر مکمل ، غوره او د اسماني کتابونو آخيرنی کتاب دی .

## دریم خصوصیت

(معجز دی )

ددې په ډول څوک بل کتاب نشي جوړولی الله د قرآن کريم ددې صفت په اړه فرمايي :

سورة الاسراء (بني اسرائيل) آية ٨٨

قُلۡ لَّئِنِ اجۡتَمَعَتِ الۡاِنۡسُ وَ الۡجِنُّ عَلٰۤى اَنۡ يَّاۡتُوۡا بِمِثۡلِ هٰذَا الۡقُرۡاٰنِ لَا يَاۡتُوۡنَ بِمِثۡلِهٖ وَ لَوۡ كَانَ بَعۡضُهُمۡ لِبَعۡضٍ ظَهِيۡرًا (٨٨)

ترجمه : ووایه (ای محمده! دوی ته) خامخا که یو ځای (راټول) شي (ټول) انسانان او(ټول) پېریان په دې چې راوړي په شان ددې قرآن (په فصاحت او بلاغت او درایت کې) نو را به نه وړي په شان ددې (قرآن ) اګر که شي ځینې د دوی له ځینو نوروسره ملګري شي .

## څلورم خصوصیت

(په تلاوت کې يې په هر حرف ثواب دی )

د حضرت عبد الله ابن مسعود ❼ نه روايت دى
هغه فرمايي : رسول الله ☸ فرمايل: من قرأ
حرفاً من كتاب الله فله به حسنة والحسنة بعشر
أمثالها لا أقول الم حرف ولكن ألف حرف ولام
حرف وميم حرف .

ترجمه : چا چې د الله ▫ له كتاب څخه يو حرف
ولوست هغه ته به يوه نيكي وركول كيږي او الله
▫ د يوې نيكي لس چنده ثواب وركوي زه دا نه
وايم چې الم حرف دى بلكه الف يو حرف دى لام
بل حرف دى او ميم بل حرف دى (معنى دا چې الله
▫ به د الم په لوستلو باندې دېرش نېكۍ بنده
ته وركوي)

## پنځم خصوصيت

## (اسانه كړل شوى دى )

الله ▫ مخلوق ته اسانه كړى دى چې دا كتاب
(قرآن ) زده كړي ووايي او ياد يې كړي لكه
مخكې چې تېر شول چې په د جهان په سويه
يوازينى دا كتاب دى چې تر بل هر كتاب څخه
زياد حافظان لري او په منظمه توګه حافظانو ته
ياد دى الله ▫ ددې د اسانتيا په اړه فرمايي :
سورة القمر آية ١٧

وَ لَقَدۡ يَسَّرۡنَا الۡقُرۡاٰنَ لِلذِّكۡرِ فَهَلۡ مِنۡ مُّدَّكِرٍ (۱۷)

ترجمه : او مونږ قرآن د زده کړې لپاره اسان کړی دی بیا څوک شته چې پند واخلي؟

## شپږم خصوصیت

(بلاغت لري )

د قرآن کریم یو خصوصیت دادی چې پداسې توګه باندې یو مطلب اداء کوي چې بنده ورڅخه عاجز دی او په هغه وخت کې چې قرآن کریم نازلېدلو ډېرو خلکو وربانديې خپل قسمتونه و آزمویل او کوښښ به یې وکولو چې که داسې کلام جوړ کړي چې د قرآن کریم په ډول الفاظ یې وي داسې بلاغت ولري لکن ټول عاجز شول او دوستانو او دښمنانو دواړه دا ومنله چې ددې په ډول کلام بشر نشي جوړولی.

# اوم خصوصیت

## (لذت یې نه کمیږي)

د تکرار سره یې خوند نه کمیږي او د بیا بیا تلاوت نه یې انسان نه ستړی کیږي او هغه کسان چې زیات تلاوت کوي کله کله داسې کیږي چې په یوه ورځ کې مکمل قرآن کریم ختموي او چې هرځل یې تلاوت کوي داسې خوند ورڅخه اخلي لکه د لمړي ځل لپاره یې چې تلاوت کوي که مونږ دا خصوصیت په نورو کتابونو کې وګورو هغه کتاب چې مونږ یې د دوهم ځل لپاره مطالعه کوو نو د ډېرو خبرو نه یې پانې زر زر اړوو ځکه په هغې کې زمونږ دلچسپي نه وي داسې که د دریم ځل لپاره یې مونږ ګورو نو د نورو ډېرو خبرو نه یې سترګې پټوو لکن د قرآن کریم هره موضوع په هرځل انسان ته داسې خوند ورکوي لکه د اول ځل لپاره یې چې تلاوت کوي.



# د قرآن کریم حقونه

قرآن کریم په انسان باندې حقونه لري قرآن د هغه ذات کتاب دی چې هغه انسان پیدا کړی دی نو چې کله انسان ته د یو ملګري لخوا لیک راشي هغه لیک په ده باندې یو څو حقونه لري څکه خو یې انسان په ډیره بېړه سره خلاصوي او وخت ورکوي او په توجه سره یې ګوري په هره خبره یې د ځان پوهولو کوښښ کوي نو د ا خو د الله ﷻ کلام دی دا هم په هر انسان په خاصه توګه په مسلمان باندې حقونه لري یو څو ته یې ستاسې توجه را ګرځوم .

## لمړی حق

## (ایمان به وربانديډ راوړي )

قرآن په مونږ حق لري چې په ده باندې او په ټولو هغه څه چې پدې کې دي باید ایمان راوړو او پدې باندې ایمان راوړ چې دا کلام ساتل شوی دی د نازلېدلو څخه تر اوسه پورې نه ترینه څه کم شوي او نه پکې څه زیات شوي او نه پکې چا څه بدل کړي دي الله ﷻ پدې مقدس کتاب باندې د ایمان په اړه فرمایي :

سورة النساء آية ١٣٦

يٰاَيُّهَا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡۤا اٰمِنُوۡا بِاللّٰهِ وَ رَسُوۡلِهٖ وَ الۡكِتٰبِ الَّذِىۡ نَزَّلَ عَلٰى
رَسُوۡلِهٖ وَ الۡكِتٰبِ الَّذِىۡۤ اَنۡزَلَ مِنۡ قَبۡلُ ؕ وَ مَنۡ يَّكۡفُرۡ بِاللّٰهِ وَ
مَلٰٓئِكَتِهٖ وَ كُتُبِهٖ وَ رُسُلِهٖ وَ الۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلٰلًاۢ بَعِيۡدًا
(١٣٦)

ترجمه : ای مومنانو ایمان راوړئ (په خپل ایمان کې ټینګ اوسئ) په الله او د هغه په رسول او په هغه کتاب چې الله په خپل رسول (محمد رسول الله) باندې نازل کړی دی او په هغه کتاب چې لدې څخه وړاندې نازل شوی دی او هغه څوک چې په الله د هغه په ملائکو ، کتابونو، رسولانو او د قیامت په ورځ کافر شي هغه له حقې لارې نه ډېر په لرې ګمراهي سره ګمراه شو .



# دوهم حق

## (تلاوت یې کول او یادول یې )

د حضرت ابي امامة الباهلي ❼ نه روایت دی هغه فرمایي چې رسول الله ☸ فرمایل : اقرؤوا القرآن فإنه یأتي یوم القیامة شفیعاً لأصحابه (صحیح میسلم)

ترجمه : قرآن لولئ ځکه دا د قیامت په ورځ باندې د خپلو ملګرو لپاره شفاعت کونکی راځي (د خپل ملګرو شفاعت به کوي) ملګري یې هغه کسان وي چې تلاوت یې کوي او عمل وربانديې کوي .

همدارنګه مسلمان باید کوښښ کوي چې که کولی شي ټول او کنه نو د خپل وس مطابق قرآن کریم یاد کړي هغه کسان چې قرآن کریم یې یاد کړی وي الله ▣ هغوی ته د علم خاوندان ویلي دي الله ▣ فرمایي :

سورة العنکبوت آیة ٤٩

**بَلْ هُوَ اٰيٰتٌۢ بَيِّنٰتٌ فِيْ صُدُوْرِ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْعِلْمَ ؕ وَ مَا يَجْحَدُ بِاٰيٰتِنَاۤ اِلَّا الظّٰلِمُوْنَ (۴۹)**

ترجمه : بلکه دا روښانه آیتونه دي په سینو د هغه کسانو کې چې هغوی ته

پدې آیت کې هغه کسانو ته اهل علم ویل شوي دي چې په سینه کې یې قرآن پروت وي او چې الله ▣

چاته اهل العلم ووايي تردې زياته نېکبختي بيا چېرته کېدلی شي . او هغه کسان چې الله ورته ښه قسمت ورکړی وي د قرآن کريم څه برخه او يا ټول يې ياد کړی وي هغه ته په کار دي چې اوس يې پرې نه ږدي او په ورځنې ژوند کې يې تکرار کړي او په خپلو ورځو يې تقسيم کړي چې په منظمه توګه يې تکرار وکوي رسول الله ﷺ فرمايي قرآن کريم چې تکرار نشي ډېر زر هېرېږي رسول الله ﷺ پدې اړه فرمايي :

تعاهدوا القرآن ، فوالذي نفس محمد بيده لهو أشد تفلتاً من الإبل في عقلها (رواه البخاري)

ترجمه : قرآن کريم را تېروی زما د قسم وي په هغه ذات چې د محمد روح د هغه په لاس کې دی (الله) چې دا قرآن کريم ډېر زر تښتېدونکی دی له هغه اوښ نه چې تړل شوی وي (يعني لکه هغه اوښ چې ترڅو تړل شوی وي هغه به ولاړ وي چې څنګه خلاص شو بيا به تښتي د انسان په سينه کې قرآن که په بيا بيا تکرار سره ونه تړل شي له هغه اوښ څخه زر تښتېدونکی دی نو که په تکرار سره وتړل شي نو پاتې به وي او چې کله يې تکرار پاتې شو بيا به تښتي (هېرېږي به ) )

# دریم حق

## (عمل وربانـدې کـول )

په مونږ باندې د قرآن کریم دریم حق دادی چې باید مونږ وربانـدې عمل وکـوو الله ﷻ ددې حق د ښکاره کولو لپاره فرمايي :
سورة الزمر آية ٥٥

وَ اتَّبِعُوْٓا اَحْسَنَ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّاْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً وَّ اَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ (٥٥)

ترجمه : مخکې ددې چې په تاسې باندې یودم عذاب راشي چې تاسې بالکل وربانـدې پوه نه شي د الله ﷻ د هغه انتهايي ښکلي کتاب تابعداري وکوئ چې تاسې ته ستاسې د رب له لوري نه نازل شوی دی .

رسول الله ﷺ او صحابه وو په خپل ژوند کې قرآن کریم داسې عملی کړی وو چې کوښښ به یې کولو چې د ژوند هره برخه یې د قرآن کریم د هدایاتو سره باید برابره وي کله چې د حضرت عائشې رضی الله عنها څخه د رسول الله ﷺ د اخلاقو په اړه پوښتنه وشوه دې مبارکې وویل : ألست تقرأ القرآن ؟ قال : بلی ، قالت : فإن خلق نبي الله صلی الله علیه وسلم کان القرآن .(رواه مسلم )

ترجمه : آیا ته قرآن نه لولې؟ پوښتنه کونکي وویل هو لولم یې حضرت عائشې رضی الله عنها ورته وویل : بېشکه اخلاق د نبی الله ﷺ قرآن وو (یعني هغه به یې کول چې په قرآن کې روا وي او هغه چې قرآن ورڅخه منع کړیده هغه به یې نه کول)

حضرت عبد الله ابن مسعود ❼ فرمایي : کان الرجل منا إذا تعلم عشر آیات لم یجاوزهن حتی یعرف معانیهن والعمل بهن

ترجمه : په مونږ کې به یو سړی وو چې لس آیتونه به یې زده شول ددې نه به مخکې نه تلو ترڅو به یې ددې معنی ګانې زده شوې او پدې باندې به یې عمل وکولو .

حضرت عبد الرحمن السلمي رحمه الله فرمایي : حدثنا الذین کانوا یقرئوننا : أنهم کانوا یستقرؤون من النبي صلی الله علیه وسلم فکانوا إذا تعلموا عشر آیات لم یخلفوها حتی یعملوا بما فیها من العمل ، فتعلمنا القرآن والعمل جمیعاً .

ترجمه : مونږ ته هغه کسانو قصه وکوله چې مونږ ته یې قرآن ویلو چې دوی د رسول الله ﷺ نه قرآن زده کولو نو چې کله به دوی لس آیتونه زده کړل هغه به یې بیا نه پرېښودل تردې چې په هغه باندې به یې عمل کول هم زده کړل نو مونږ

قرآن کریم او په دې باندې عمل کول دواړه زده کول .

## ځلورم حق

### (زده کول او بل چاته ور زده کول یې )

د قرآن کریم بل حق په امت باندې د هغه زده کول دي او د هغه کسانو چې زده ئې وي بل چا ته ور ښودل دي په خاصه توګه د خپلې کورنۍ غړو ته او بیا نورو خپلوانو ته بیا د خپل کلي خلکو ته په همدې سلسله بیا چې هرچاته یې په وس کې وي باید ټولو خلکو ته د قرآن کریم د ور زده کولو کوښښ وکوي رسول الله ﷺ پدې اړه فرمایي : خیرکم من تعلم القرآن وعلّمه . (رواه البخاري)

ترجمه : پتاسې کې غوره کس هغه دی چې قرآن کریم یې زده وي او بل چاته یې ورو ښیي .

نو مسلمان ته ښایي چې قرآن کریم زده کړي ځینې زمونږ تعلیم یافته خلک چې قرآن کریم وایي نو انسان ورته حیرانیږي چې دا څه وایي نه د قرآن کریم الفاظ اداء کولی شي او نه هغه په خپله ژبه راوستلی شي سره ددې چې په تعلیم کې یې کالونه تېر کړې وي لکن قرآن کریم یې په سمه توګه نه وي زده ددې نه د انسان ډېره بد بختي ښکاره کیږي او هغه کسان

چې په سمه توګه قرآن کريم نشي تلاوت کولی هغوی دې فکر نه کوي چې دوی تعليم يافته دي هغوی د فکر وکوي چې دوی اوس هم ددې قابل دي چې جومات ته لاړشي او د ۵ کلنو او ٦ کلنو ماشومانو په صف کې کيني او د هغوی سره قرآن کريم زده کړي او همدا ورته په کار هم دي .



# پـنځم حق

## (پـه آيـتـونـو کـې يـې فـکـر کـول )

کـلـه چې انـسـان د الله کـلام آوري دا ډېـره لـويـه خـبـره ده بـايـد پـه هـر ټـکـي ټـکـي کـې يـې فـکـر وکـوي پـه پـوره مطـلـب يـې ځـان پـوه کـړي الله فـرمـايـي :

اَفَلَا يَتَدَبَّرُوۡنَ الۡقُرۡاٰنَ اَمۡ عَلٰى قُلُوۡبٍ اَقۡفَالُهَا (۲۴)

تـرجمـه : آيـا دا خـلـک پـه قـرآن کـې فـکـر نـه کـوي او کـه د دوی پـه زړونـو بـانـدې د زړونـو قـلـفـونـه لـګـېـدلـي دي .

پـه بـل ځـای کې الله فـرمـايـي مـونـږ قـرآن کـريـم د پـنـد لـپـاره اسـان کـړی دی آيـا پـنـد اخسـتـونـکـی شـتـه ؟ يـعـنـي چې داسې څـوک وي چې هـغـه پـنـد اخسـتـل غـواړي نـو بـيـا ورڅـخه پـنـد اخسـتـلـی شي او پـنـد بـه انـسـان هـغـه وخت واخـلـي چې کـلـه آيـت واوري پـه هـغـه پـوه شي او دهـغې د مطـلـب پـه اړه فـکـر وکـوي تـدبـر پـکې وکـوي او څـوک چې د قـرآن کـريـم د آيـتـونـو پـه مطـلـب پـوه شي پـه قـرآن کـريـم کې چې هـرشی دي هـغـه د پـنـد او نـصـيـحت دي کـه د تـېـرو امـتـونـو واقـعې دي کـه مـوجـوده خـلـکـو تـه نـصـيـحت دی او کـه د راتـلـونـکې پـه اړه خـبـرې دي او چې انـسـان پـه صحيح مـعـنـی کې پـه قـرآن کـريـم بـانـدې پـوه شي نـو دده زړه بـه يـې د تـلاوت سره نـرم شي

او لـه سترګې نـه بـه يې اوښکه راشي او هغه چې يـا خو د آيت پـه مطلب نـه پـوهيږي او يـا يې ذهن د تـلاوت لـوري تـه نـه وي فـكر پـكې نـه كـوي نـو د هغه زړه بـه پـه دتـلاوت سره څـه نـرم شي حضرت عبد الله ابـن مسعود ❼ فـرمـايـي : قال لي النبيُّ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّم: اقْرَأْ علَّي القرآن قلتُ: يا رسُولَ اللَّه ، أَقْرَأُ عَلَيْكَ، وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ، قالَ: إِني أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي فقرَأْتُ عليه سورَةَ النِّساء، حتى جِئْتُ إلى هذِهِ الآية فَكَيْفَ إِذا جِئْنا مِنْ كُلِّ أُمَّة بِشَهيد وِجئْنا بِكَ عَلى هَؤلاءِ شَهِيداً { قال: حَسْبُكَ الآن فَالْتَفَتَّ إِليْهِ، فَإِذَا عِيْناهُ تَذْرِفانِ .متفقٌ عليه.

تـرجمه : مـاتـه رسول الله ﷺ وويـل مـاتـه قـرآن كـريم تـلاوت كـړه .. مـا ورتـه وويـل زه يـې تـاتـه تـلاوت كـړم پـداسې حـال كې چې هغـه پـه تـا بـانـدې نـازل شوى دى؟ هغـه ﷺ راتـه وويـل : زمـا دا خـوښيږي چې لـه بـل چـا څخه يـې واورم بـيـا مـا ورتـه سورت الـنساء تـلاوت كـولـو تـردې چې دې آيـت تـه ورسېدم (چې معنى يې ده ) څنګه حـالـت بـه وي چې د هر امت نـه مـونـږ ګـواه راولـو او تـا پـه دوى ټـولـو بـانـدې ګـواه راولـو رسول الله ﷺ راتـه وويـل چې اوس بـس دى مـا رسول الله ﷺ تـه وكـتـل ومې لـيـدل چې درسول الله ﷺ د سترګـو نـه اوښكې تـويـېدلـې .

## شپږم حق

د تلاوت په وخت کې چپ کېدل (غوږ ورته نيول)
څرنګه چې قرآن کريم د هغه چا کلام دی چې ټوله دنيا يې پيدا کړېده او د ټولې دنيا مالک دی هغه ټول انسانان پيدا کړي دي او ټولو انسانانو ته يې ژوند ورکړی دی او ټول انسانان د هغه په رحم سره ژوندي دي چې هغه ونه غواړي يو انسان هم ژوند نشي کولی او نه به يو انسان ځان ته خوراک او څښاک پيدا کړلی شي نو ددې امله چې د داسې چا کلام د انسان په مخ کې تلاوت کيږ پدې انسان باندې دا کلام حق لري چې هغه بايد چپ شي .

وَ اِذَا قُرِئَ الۡقُرۡاٰنُ فَاسۡتَمِعُوۡا لَهٗ وَ اَنۡصِتُوۡا لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ (۲۰۴)

ترجمه : کله چې قرآن کريم تلاوت کيږي په توجه سره غوږ ورته کېږدئ او چپ شئ ترڅو په تاسې باندې رحم وشي .
نو چې انسان غواړي چې په ده رحم وشي نو چې کله قرآن کريم تلاوت کيږي خبرې د نه کوي په غور سره د واوري چې د الله ﷻ په کلام کې څه شی دي؟ اګر که د قاري اواز خراب وي ، اګر که اواز ده ته صفا نه رسيږي بيا د هم دی ورته چپ شي او په غور سره د واوري .

# اوم حق

ادب يې کول

قرآن کريم به په داسې ځای که نه ايږدي چې بې عزتي يې وشي بلکه هروخت به يې په ظاهر او زړه کې عزت کوي صرف پداسې ځای کې به يې ايږدي چې هلته يې عزت کيږي لږ وروسته به يې په مسئلو کې راشي چې پداسې ځای کې به يې نه ايږدي چې دی ځملي پښې يې هغې خواته شي او پداسې ځای کې به يې هم نه ايږدي چې خلک ترينه لوړ کيني او يا چې ترځو قرآن کريم په ښکته ځای کې ايښی وي انسانان به تر هغه څخه په لوړ ځای کې نه کيني.



# احکام او مسئلې

⇦ هغه کس چې اودس یې نه وي نو که یې د قرآن کریم کوم سورت یاد وي په یاد یې تلاوت کوي نو ناروا نه دی لکن ترڅو یې چې اودس نه وي قرآن کریم ته به لاس نه ور وړي ﷲ فرمايي :

سورة الواقعة آية ۷۹

**لا يَمَسُّهُ إِلا الْمُطَهَّرُونَ**

یعني د قرآن ته د لاس نه ور وړي مګر هغه کسان چې هغوی پاک وي .

همدارنګه رسول ﷲ فرمايي لا تمس القرآن إلا وأنت طاهر

یعني ته قرآن ته لاس مه وروړه مګر په هغه صورت کې چې ته پاک وې .

⇦ لکن هغه کسان چې په جنابت کې وي ترڅو چې پاک شوي نه وي هغه به یې په یادو هم نه تلاوت کوي حضرت علي ❼ د رسول ﷲ ☸ په اړه فرمایلي دي : کان النبي صلى ﷲ عليه وسلم لا يحجبه شيء من القرآن إلا الجنابة (ترجمه : رسول ﷲ ☸ به هیڅ شي د قرآن د تلاوت څخه نه منع کولو مګر یوازې جنابت .

همدارنګه رسول الله ﷺ فرمايي : أما الجنب فلا ولا آية (ترجمه : او جنب په تلاوت نه کوي حتی يو آيت به هم نه تلاوت کوي)

⇦ همدارنګه هغه کس چې په جنابت کې وي او يا ښځه په حيض يا نفاس کې وي هغوی به لوڅ قرآن ته بالکل لاس نه وروړي او که پاکه جامه وي نو بيا يې په هغې سره نيول روا دي هغه کسان چې مسلمان نه وي هغوی به هم نه پرېښودل کيږي چې قرآن کريم ته لاس وروړي همدارنګه په ځينې کورونو کې غير مسلم خادمان کار کوي نو قرآن کريم به د هغوی د لاس نه هم ساتل کيږي او کله چې هغوی د کور صفايي کوي نو د کور مسلمان غړی به ورځي قرآن کريم به د هغوی له مخ نه لرې کوي ترڅو هغوی ته د قرآن کريم سره د لاس لګولو ضرورت نشي .

## د قرآن کريم ليکل او ټايپ کول

هغه کس چې اودس يې نه وي او د قرآن کريم ليکل غواړي نو چې هغه کاغذ يې په لاس کې وي نو دا ورته نه دي روا او که کاغذ يې په زمکه ورته ايښی وو بيا يې وربانديې لپاسه ليکل کول نو بيا پروا نه کوي ددې امله که څوک د قرآن آيتونه په کمپيوټر کې ټايپ کوي نو هلته خو يې هم لاس د کاغذ سره نه لګيږي او نه کاغذ شته نو بې اودسه يې ټايپ کولی شي .

او هغه کس چې په جنابت کې وي د هغه په اړه په جوهرة النيرة کې ليکلي دي :

يكره للجنب والحائض كتابة القرآن إذا كان مباشر اللوح والبياض ، وإن وضعهما على الأرض وكتبه من غير أن يضع يده على المكتوب لا بأس به

ترجمه : د جنب او حائضې لپاره مکروه دي چې هغه قرآن وليکي کله يې چې لاس د تختې او يا د کاغذ سره لګيږي او که يې دا تخته او يا کاغذ په زمکه باندې ایښی وو او د ليکلو په وخت کې يې لاس وربانډې نه لګېدو نو بيا يې پروا نشته .

⇦ لکن عالمګيري پدې صورت کې هم په کلکه ورځخه منع کړيده او هغه وايي چې جنب به بالکل قرآن نه ليکي که يې لاس ورسره لګيږي او کنه هغه فرمايي :

و الجنب لا يكتب القرآن و ان كانت الصحيفة على الارض و لا يضع يده عليها و انكان مادون الآية .

ترجمه: جنب به قرآن کريم نه ليکي اګر که تخته (په کوم شي باندې چې دا قرآن ليکي) په زمکه ورته کيږدي او په هغه باندې خپل لاس نه لګوي اګر که تر آيت کم هم وي .

⇦ لکن احتياط ، ادب او پوره احترام پدې کې دی چې ترڅو چې انسان په پوره اوداسه کې نه

وي نه دې د قرآن ي آيتونو كمپوز كوي او نه دې ليكي.

## د قرآن كريم د ترجمې حكم

⇦ مخكې تېر شول چې قرآن كري ته به جنب او بې اودسه حائضه او په نفاس كې ښځه لاس نه وروړي نو كه د قرآن كريم ترجمه شوې وه د هغې به څه حكم وي پدې اړه عالمګيري فرمايي : كه د قرآن ترجمه په فارسي كې ليكل شوي وي بيا هم دهغې سره د اوداسه نه بغير لاس لګول مكروه دي او دلته د فارسي ټكى د مثال په توګه ياده كړل شويده يعني ترجمه چې په هره ژبه باندې شوې وي لاس وروړل مكروه دي .

## تلاوت په توجه سره كول

⇦ هغه څوك چې د قرآن كريم تلاوت كوي ترڅو چې ورته مشكل نه وي كوښښ به كوي چې په ښه حالت كې يې تلاوت وكوي قبلې ته مخامخ كيني ، په ا دب سره كيني ، پاكې جامې يې په ځان وي (فتاوى قاضي خان) او كه دا ډول كېناستل مشكل وي نو بيا چې څه ډول تلاوت كونكي ته اسان وي په هغه ډول د كيني .

⇦ او هغه څوك چې د سترګيا له امله او يا د بل عذر له امله په سمه توګه نشي كېناستلى نو

هغه د تکیه وکوي تلاوت د وکوي حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي :

ترجمه : رسول الله ﷺ به زما په غیږه کې تکیه کوله او په همدې حالت کې به یې تلاوت کولو (صحیح البخاري)

ددې حدیث په تشریح کې په فتح الباري کې لیکلي دي :

"وفي الحدیث : دلالة علی جواز قراءة القرآن متکئاً ، ومضطجعاً ، وعلی جنبه ، ویدخل ذَلِكَ في قول الله عز وجل : ( الَّذِينَ يَذْكُرُونَ اللَّهَ قِيَاماً وَقُعُوداً وَعَلَى جُنُوبِهِمْ ) آل عمران/۱۹۱

⇦ پدې حدیث کې پدې دلالت دی چې په تکیه سره د قرآن کریم تلاوت روا دی همدارنګه که یې تکیه کړې وي او یا په یوه اړخ ورته پروت وي او دا په هر ډول حالت کې تلاوت کول د الله ﷻ پدې قول کې داخلیږي : (هغه کسان چې ذکر کوي پداسې حالت کې چې دوی ولاړ وي او یا ناست وي او یا یې په څنګونو باندې تکیه کړې وي) .

⇦ هغه څوک چې د قرآن کریم د آیتونو په معنی پوهیږي هغوی به تلاوت پداسې توجه سره کوي چې د هر آیت په مطلب پوهیږي او ذهن به نه پریږدي چې شیطان یې د تلاوت څخه بلې خوا ته واړوي او که چا ته د جنت او دوزخ او د الله ﷻ د رضا او قهر د آیتونو سره ژړا ورشي نو

ډېره ښه خبره ده رسول الله ﷺ فرمايي : كل العيون باكية يوم القيامة إلا ثلاثة عين بكت من خشية الله وعين غضت عن محارم الله وعين باتت تحرس في سبيل الله

ترجمه : د قيامت په ورځ به ټولې سترګې ژاړي مګر درى ډوله سترګې به نه ژاړي.

١. هغه سترګه چې د الله ﷻ له ويرې يې ژړلي وي.

٢. هغه سترګه چې د الله ﷻ له محارمو (هغه شيان چې الله ﷻ ورته كتل حرام كړي وي) پټه شوې وي.

٣. هغه سترګه چې د الله ﷻ په لاره كې يې د پهرې كولو په موخه شپه ويښه تېره كړې وي .

⇦ حضرت عبد الله ابن مسعود ❼ فرمايي : **قال لي النبيُّ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّم: اقْرَأْ علَّي القرآن قلتُ: يا رسُولَ اللَّه ، أَقْرَأُ عَلَيْكَ، وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ، قالَ: إِني أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي فقرَأْتُ عليه سورَةَ النِّساء، حتى جِئْتُ إلى هذِهِ الآية: {فَكَيْفَ إِذا جِئْنا مِنْ كُلِّ أُمَّة بِشَهيد وِجئْنا بِكَ عَلى هَؤلاءِ شَهِيداً } قال: حَسْبُكَ الآن فَالْتَفَتَّ إِليْهِ، فَإِذَا عِيْناهُ تَذْرِفانِ . متفقٌ عليه.**

ترجمه : ماته رسول الله ﷺ وویل ماته قرآن کریم تلاوت کړه .. ما ورته وویل زه یې تاته تلاوت کړم پداسې حال کې چې هغه په تا باندې نازل شوی دی؟ هغه ﷺ راته وویل : زما دا خوښیږي چې له بل چا څخه یې واورم بیا ما ورته سورت النساء تلاوت کولو تردې چې دې آیت ته ورسېدم (چې معنی یې ده ) څنګه حالت به وي چې د هر امت نه مونږ ګواه راولو او تا په دوی ټولو باندې ګواه راولو رسول الله ﷺ راته وویل چې اوس بس دی ما رسول الله ﷺ ته وکتل ومې لیدل چې درسول الله د ﷺ سترګو نه اوښکې تویېدلې .

⇦ د حضرت ابي هریره ❼ نه روایت دی هغه فرمایي : قالَ رسُولُ اللَّهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وسَلَّم: لاَيَلِجُ النَّارَ رَجُلٌ بَكَى مِنْ خَشْيَةِ اللَّه حَتَّى يَعُودَ اللَّبَنُ في الضَّرْعِ، وَلا يَجْتَمعُ غُبَارٌ في سَبِيلِ اللَّه ودُخانُ جَهَنَّمَ رواه الترمذي

ترجمه : رسول الله ﷺ فرمایل : هغه کس چې د الله ▣ له ویرې یې ژړلي وي تر هغه وخته به اور ته نه ننوزي ترڅو چې شودې بېرته په غولانځ کې ور ونه ګرځي (بالکل به اور ته نه ننوزي) او په یو انسان باندې د الله ▣ د لارې ګرد او د جهنم لوګی دواړه نه جمع کیږي .

# قرآن کریم په جیب کې ګرځول

⇦ که له چا سره د قرآن کریم وړوکې نسخه وي هغه ته روا دي چې په جیب کې یې وګرځوي لکن ددې قرآن کریم سره به حمام، تشناب او د ګندګې ځایونو ته نه ځي بلکه کله یې چې د ګندګې ځایونو ته د تللو ضرورت شي نو قرآن کریم به له مخکې په داسې ځای کې کیږدي چې هغه یې د بې عزتې ځای نه وي .

⇦ کله یې چې په جیب کې ساتي پداسې جیب کې به یې نه ساتي چې په هغه کې ساتل د قرآن کریم بې عزتي وي د مثال په توګه د تخرګ په جیب کې چې کله ځملي نو کله کله په قرآن کریم باندې لپاسه ورځملي او تر ده لاندې کیږي پداسې توګه یې ساتل روا نه دي او د قرآن کریم د عزت سره ټکر دی .

کله چې ځملي ددې لپاره چې د قرآن کریم توهین ونشي هغه به په داسې ځای کې کیږدي چې لوړ وي او بې عزتي یې نه کیږي .

امام نووي رحمه الله فرمايي :

أجمع المسلمون على وجوب صيانة المصحف ، واحترامه

ترجمه : مسلمانانو پدې باندې اجماع کړیده چې د قرآن کریم ساتنه واجب ده او د هغه احترام واجب دی . (التبیان في آداب حملة القرآن )

ويحرم توسده ؛ بل توسد آحاد كتب العلم حرام (البرهان في علوم القرآن ، للزركشي)

ترجمه : د ويده کېدلو په وخت کې تر سر لاندې هم د قرآن کېښودل حرام دي د البرهان مصنف رحمه الله فرمايي چې د دين د هر کتاب نه بالښت جوړول او په هغه باندې سر کېښودل حرام دي .

**ويحرم تَوَسُّدُ الْمُصْحَفِ وَكَذَا سَائِرُ كُتُبِ الْعِلْمِ إنْ كَانَ فِيهَا قرآن وَإِلَّا كُرِهَ فَقَطْ (المغني)**

ترجمه : په قرآن كريم باندې سر کېښودل حرام دي همدارنګه ټول ديني كتابونه چې قرآني آيتونه پکې وي او كه آيتونه پکې نه وي بيا صرف مكروه دى .

**انَّهُ يَحْرُمُ الِاتِّكَاءُ عَلَى الْمُصْحَفِ ، وَعَلَى كُتُبِ الْحَدِيثِ وَمَافِيهِ شَيْءٌ مِنْ الْقرآن اتِّفَاقًا (مجمع البحرين)**

ترجمه : بېشکه په قرآن كريم باندې تکيه کول حرام دي همدارنګه د حديثونو په كتاب باندې او په هغه كتابونو باندې چې د قرآن كريم آيتونه پکې وي بالاتفاق وربانديې تکيه کول حرام دي .

# په موبایل کې قرآن کریم

علماوو پدې اړه څېړنه کړېده چې ددې پوښتنو ځوابونه را پیدا کړي چې آیا په موبایل کې ثبت شوی قرآن د قرآن د نسخې حکم لري؟ آیا په هغه کې دتلاوت لپاره اودس ضروري دی؟ کله چې په موبایل کې قرآن کریم وي تشناب ته یې وړل څنګه دي؟ د جنب حائضی او نفاس لرونکې ښځې ته هغه ته لاس وروړل څنګه دي؟ او داسې نور ...

نو دوی د تحقیق نه وروسته دې خبرې ته رسېدلې دي چې په موبایل کې ثبت کړلی شوی قرآن دهغه قرآن ي نسخې احکام نه لري کوم چې چاپ د لوستونکي په لاس کې وي ځکه هلته په موبایل کې رښتوني دا حروف او الفاظ لیکل شوي نه دي صرف هلته د برقي شعاعو په واسطه رنګونه ښکاره کیږي چې په کمپیوتر کې د خاص سیستم له مخې هلته لوستونکي ته داسې شیان ښکاره کیږي چې لوستل کیږي نو ددې امله که په کوم موبایل کې قرآن کریم پروت وي او د چا اودس نه وي هغه مس کوي نو ګناه وربانډې نشته په همدې ډول که د چا اودس نه وي دهغه څخه تلاوت کوي نو دهغه تلاوت حکم یې دی چې له یادو یې څوک کوي د یو لوی سعودي عالم الشیخ عبد الرحمن بن ناصر البراك (چې په عقیدة الطحاویة باندې یې شرح هم لیکلې ده) پوښتنه وشوه :

ما حكم قراءة القرآن من جهاز الجوال بدون طهارة ؟

ترجمه : په موبایل کې چې کوم کریم ثبت شوی وي بې اودسه دهغه څخه د تلاوت څه حکم دی؟

هغه ورته په ځواب کې وویل :

الحمد لله وحده والصلاة والسلام على من لا نبي بعده أما بعد.

فمعلوم أن تلاوة القرآن عن ظهر قلب لا تشترط لها الطهارة من الحدث الأصغر ، ولكن الطهارة لقراءة القرآن ولو عن ظهر قلب أفضل ، لأنه كلام الله ومن كمال تعظيمه ألا يقرأ إلا على طهارة

(د موبایل نه تلاوت داسې دی لکه د یاد نه تلاوت) او دا خبره معلومه ده چې په یادو تلاوت لپاره د وړوکې بې اودسي څخه پاکوالی ضروري نه دی (اودس ورته ضروري نه دی) لکن د تلاوت لپاره اودس کول اګر که په یادو هم غوره خبره ده ځکه دا د الله کلام دی او دا یې تعظیم دی چې باید په اوداسه سره تلاوت شي .

د بل عالم شیخ صالح الفوزان څخه پوښتنه وشوه :

زما سره نوی موبایل دی په کوم کې چې په مکمله توګه قرآن کریم په ښه ډیزاین باندې ثبت کړل شوی دی زه کله چې له مانځه نه وړاندې جومات ته لاړشم نو په خپل موبایل کې تلاوت کوم دا

تلاوت د قرآن کریم د نسخې نه د تلاوت په ډول ثواب لري؟

هغه په ځواب کې ورته وویل : المصاحف والحمد لله متوفرة في المساجد وبطباعة فاخرة ، فلا حاجة للقراءة من الجوال ، ولكن إذا حصل هذا فلا نرى أنه يأخذ حكم المصحف

ترجمه : په جوماتونو کې خو د قرآن کریم نسخې اوس په ښو چاپونو کې او ښې زیاتې وي نو د موبایل نه یې تلاوت ته څه ضرورت دی لکن بیا هم چې ته د هغه نه تلاوت کوې نو مونږ ته نه ښکاره کیږي چې دا په موبایل کې ثبت شوی قرآن د د قرآن کریم د نسخې حکم واخلي .

## په موبایل کې د قرآن کریم صفحه نه وي

بل په موبایل کې صفحې نه وي خو همدا یوه صفحه ده یو وخت وربانديې یو شی ښکاره کیږي بیا هغه شی لرې کیږي په هماغه ځای کې بل شی را ښکاره کیږي او هرشی لکه مخکې چې تېر شول د رنګونو د شعاعو په واسطه را څرګندیږي او بېرته ختمیږي په موبایل کې د تلاوت په وخت کې هم که مونږ فکر وکوو چې مونږ دوهمې صفحې ته ورسېدو او دوهمه صفحه مو را واړوله هغه اوله صفحه څه شوه؟ همداسې لږ وروسته چې مونږ قرآن کریم بند کړو نو پدې ځای به یو بل شی راخلاص شي نو

ددې املـه پـه مـوبـايـل کې مـوجـود قـرآن کـريـم داسې
قـرآن کـريـم نـه وي لـکـه پـه کـاغذ بـانـدې چاپ شوې
نـسخه چې وي ددې املـه وربـانـدې هغه احکـام نـه
مـرتـب کـيـږي .
نـو ددې خبـرو لـه املـه پـه مـوبـايـل کې مـوجـود قـرآن
د قـرآن ي نـسخي حکم نـه لـري جنـب، حـائـضه او پـه
نـفـاس کې ښځه کـولـى شي هغه مـوبـايـل اسـتعمـال کـړي
چې پـه هغه کې قـرآن کـريـم ثـبت شوى وي همدارنـګه
کـه دا مـوبـايـل پـه جيب کې وي او څـوک تـشنـاب تـه
ځي نـو ګـنـاه وربـانـدې نـشتـه او کـه څـوک د مـوبـايـل
نـه تـلاوت کـوي اودس کـول ورتـه ضروري نـه د ي ځکـه
اودس کـول د قـرآن کـريـم د نـسخې د مس کـولـو
لـپـاره ضروري وو .

## پـه قـرآن کـريـم سره فـال اچول

⇦ ځيـنـې خلـک چې کـوم کـار کـوي پـه قـرآن کـريـم سره
فـال اچوي او دهغې مـختـلـفې طريـقـې دي ځيـنـې خلـک
داسې کـوي چې قـرآن کـريـم درى ځلـه را خلاص کـړي
پـه دريـم ځل يـې چې را خلاص کـړي بـيـا درى پـاڼې
واړوي او پـه ورپـسې ښي لاس تـه مخ کې دريـمه
کـرښه تـلاوت کـړي نـو چې پـه هغه کې د رحمت او يـا
دې تـه ورتـه مضمون وي نـو دى وايـي چې پـه کـار
کې خيـر دى او کـه د عذاب او ديـتـه ورتـه خبـرې
وي وايـي چې پـدې کـار کې شر دى نـو دا ډول
فـالـونـه اچول پـه قـرآن سره نـاروا دي او پـه

فال باندي د کوم کار په خير او شر باندې يقين کول په هر ډول ناروا دي اسلام ترينه منع کړېده او کله چې مونږ په يو کار کې حيران شو او دهغې په خير او شر نه پوهيږو نو رسول الله ﷺ مونږ ته د استخارې طريقه ښودلې ده چې دعا او پوره طريقه يې ددې سلسلې په اول کتاب کې د تفصيل سره تېره شوېده .

⇦ رسول الله ﷺ صرف يو فال خوښولو چې کله به څوک په سفر باندې وتل چې ښه خبره به يې واورېده د مثال په ډول په وتلو کې به يې د منصور ، نجيح ، مفلح او سعيد ډول الفاظ واورېدل نو ويل به يې چې دا د کاميابي سفر دی او پدې کې خير دی او همدارنګه که چا به دا الفاظ د کار په شروع کې واورېدل نو داسې به ګڼل کېده چې پدې کار کې خير دی او دا به د کاميابي سره پای ته ورسيږي او رسول الله ﷺ به بد فالي نه خوښوله د مثال په ډول که څوک د کار د شروع په وخت کې او يا د سفر د شروع په وخت کې داسې نومونه واوري چې دهغې نه ناکامي ښکاره کيږي نو د کار د ناکامي په اړه د فيصله وکوي او که څوک بيا د همدې امله دا کار پريږدي نو ددې څخه سخته منع شوېده .

⇦ د اسلام نه مخکې هم د فال اچولو خپلې طريقې وې چې کله د اسلام رڼا خپره شوه له هغه کارونو څخه يې منع وکوله نو په قرآن کريم

باندي فال اچول هم د فال قسم دی شريعت ورڅخه منع کړيده .

## د قرآن کريم فيته اوسي ډي

هغه فيته اوسي ډي چې قرآن کريم پکې ثبت شوى وي هغه هم د قرآن کريم د نسخې په ډول حيثيت نلري نو که څوک يې بې اودسه مس کوي او يا يې را اخلي نو ناروا نه ده لکن بيا هم ددې امله چې د قرآن فيته اوسي ډي ده اهانت کول يې ښه خبره نه ده لکن پداسې ډول حرام نه دي لکه د قرآن کريم د نسخي توهين کول .

أما الأشرطة فليست كالمصاحف ، لأن الأشرطة ليس فيها كتابة ، غاية ما هنالك أن ذبذبات معينة موجودة في الشريط إذا مرت بالجهاز المعين ظهر الصوت ، فلذلك يدخل بها ولا إشكال في ذلك . ( ابن عثيمين رحمه الله)

ترجمه : هر چې د قرآن کريم فيتې دي دا داسې نه دي لکه قرآن کريم ځکه د قرآن کريم په فيته کې د قرآن ليکل موجود نه وي او زياد نه زياد هلته يو داسې کيفت وي چې هغه تر غږونکي ماشين يا ټيپ څخه تيريږي هلته هغه خاص اواز راوزي ددې امله که څوک د قرآن کريم د فيتې سره حمام يا تشناب ته ننوزي نو پدې کې څه مشکل نشته .

# په چپ لاس کې قرآن کریم اخستل

ترڅو پورې چې د انسان ښی لاس فارغ وي نو د قرآن کریم د اخستلو بلکه د هرشي د اخستلو لپاره ښی لاس استعمالول سنت دي نو کله چې په ښي لاس کې عذر وي د مثال په توګه ښی لاس ستړی شي او یا بل درانده شی وي چې هغه په چپ لاس کې نشي اخستلی او یا بل عذر وي نو بیا که قرآن کریم په چپ لاس کې واخلي هم پروا یې نشته ځکه دواړه لاسونه هر وخت د ضرورت په وخت کې یو له بل سره مرسته کوي او چې یو لاس د کوم کار کولو نه عاجز کیږي نو بیا یې انسان په بل لاس کوي او یا دواړه ورته ملګري کړي لکن پدې شرط چې دا نیت یې نه وي چې په لاس کې یې بل شی وي هغه ورته د قرآن کریم څخه محترم ښکاره کیږي او هغه یې په ښي لاس کې اخستي وي او که داسې صورت وي نو بیا د قرآن کریم په چپ لاس کې اخستل ناروا دي انسان وربانديې ګنهګار کیږي.

# د قرآن کريم نسخه چې زړه شي

مستعمل کتابونه ، اخبارونه او هر ډول کاغذ خرڅيږي دا بېرته جمع کيږي او د ماشينونو په مرسته بېرته نوی کاغذ ترينه جوړيږي او بيا وربانديې بل شی چاپ کيږي لکن قرآن کريم چې کله زوړ شي نو هغه ددې خلکو لاسونو ته ور رسول نا روا دي او د قرآن کريم کاغذ بېرته د بل شي د چاپ لپاره ناروا ګڼل شوي دي لکن ددې سره به څه کوي؟ دوه لارې يې دي يا خو دې وسوزوي حضرت عثمان ❼ چې کله قرآن سره را ټولولو نو په هر ځای کې چې د چا سره د قرآن کريم آيتونه وو هغه يې وروسته د هغه ده ❼ ته را ټول کړل چې ده ورپسې عام اعلان وکولو او د ټولو حافظانو صحابه وو په مشوره يې قرآن کريم په موجوده نسخه کې چې په نسخ خط (الرسم العثماني) باندې ليکل شوی وو را ټول کړو ددې لپاره چې ټول مسلمانان بايد صرف يو ډول قرآن ولري نو يې کاتبانو ته وويل چې اوس ددې څخه نورې نسخې وليکئ او ددېنه بغير چې د چا سره کومه نسخه وي هغه د ټول وسوزوي حضرت انس ابن مالک ❼ ددې په اړه فرمايي :

أن عثمان بن عفان رضي الله عنه لما أمر بنسخ المصاحف َأَرْسَلَ إِلَى كُلِّ أُفُقٍ بِمُصْحَفٍ مِمَّا نَسَخُوا ، وَأَمَرَ بِمَا سِوَاهُ مِنْ الْقرآن فِي كُلِّ صَحِيفَةٍ أَوْ مُصْحَفٍ أَنْ يُحْرَقَ

ترجمه : حضرت عثمان ابن عفان ❼ چې کله د قرآن کريم نسخه تياره کړه نو هر لوري ته يې د هغې نسخې نمونه ولېږله چې له ده سره وه او ددينه بغير چې نورې وې د ټولو په سوزولو يې امر وکولو .

فِي هَذَا الْحَدِيث جَوَاز تَحْرِيق الْكُتُب الَّتِي فِيهَا اِسْم اللَّه بِالنَّارِ ، وَأَنَّ ذَلِكَ إِكْرَام لَهَا ، وَصَوْن عَنْ وَطْئِهَا بِالْأَقْدَامِ . فتح الباري

ترجمه : پدې حديث کې د هغه کتابونو په اور سره د سوزولو جواز دی چې د الله نوم پکې وي او دا سوزول ددې کتابونو عزت دی او ددې څخه ساتل دي چې خلک وربانديې وخيږي .

⇦ که چېرته داسې صحرا پيدا کيږي چې هلته څوک نه ګرځي نو بيا يې هلته خښول تر سوزولو څخه غوره دي او که وسوزول شي او بيا يې ايره خښه کړله شي دا هم غوره ده او د حضرت عثمان ❼ په زمانه کې ورسره همداسې شوي وو .

## قرآن کريم په زمکه کېښودل

امام نووي رحمه الله فرمايي :

أجمع المسلمون على وجوب صيانة المصحف ، واحترامه

ترجمه : مسلمانانو پدې باندې اجماع کړېده چې د قرآن کریم ساتنه واجب ده او د هغه احترام واجب دی . (التبیان في آداب حملة القرآن )

نو ددې امله ترڅو چې کېدلای شي نو د قرآن کریم عزت کول په هرمسلمان واجب دي نو چې کله مسلمان په کوم ځای کې کیني نو قرآن کریم به پداسې ځای کې نه ایږدي چې هلته یې اهانت وشي بلکه چې یو څه لوړ وي او د قدر ځای وي هلته به یې ساتي لکن کله چې په زمکه د قرآن کریم د کېښودلو ضرورت شي لوړ ځای نه وي او یا د قرآن کریم نسخې ډېرې وي نو بیا د په زمکه باندې پاک شی ورته و غوړوي او په هغه یې دې کیږدي او دا روا ده ځکه دا د قرآن کریم اهانت نه ګڼل کیږي او په هر هغه ځای کې او په هغه طریقه سره کېښودل چې د قرآن کریم اهانت و ګڼل شي نو ناروا دی .

د سعودي د یو لوی عالم شیخ عبد الله بن جبرین څخه پوښتنه وشوه :

ما حکم وضع المصحف على الأرض الطاهرة أو السجادة ؟ .

ترجمه : په جای نماز باندې د قرآن کریم د کېښودلو څه حکم دی؟

ده ورته په ځواب کې وویل :

الأوْلى أن يوضع على مكان مرتفع حتى يتحقق رفعه حسّاً ومعنى ، قال الله : ( مرفوعة مطهرة ) فإذا احتجتَ إلى وضعه : فضعْه على مكان مرتفع ولو قليلاً ، فإذا لم يتيسر : جاز وضعه على الأرض على فراشٍ طاهرٍ ، ونحوه ، وينزَّه المصحف بأن يوضع على مكان منخفض أو على مكان متنجس أو على التراب ؛ لما فيه من الاحتقار له ، وإذا احتيج إلى وضعه على فراش طاهر : فلا بأس بذلك ، مع الحرص على رفعه حسّاً ومعنى .

ترجمه : ښه خبره خو داده چې په لوړ ځای کې کېښودل شي ترڅو چې په حسي او معنوي توګه لوړ شي الله د قرآن کريم د آيتونو په اړه فرمايي (لوړ دي پاک دي) نو چې ستا يې کېښودلو ته ضرورت شي نو په لوړ ځای يې کېږده (که طاخچه او يا بل لوړ ځای نه پيدا کيږي) نو خير اګر که لږ لوړ هم وي او که داسې لوړ ځای نه وي نو بيا يې په پاکه زمکه او پاک فرش باندې کېښودل هم روا دي او قرآن کريم به په ښکته ځای کې د کېښودلو څخه ساتل کيږي همدارنګه له هغه ځای څخه چې هغه پاک نه وي او يا په خاورو باندې د کېښودلو نه ځکه دا د قرآن کريم سپکاوی دی او چې په پاک فرش يې د کېښودلو ضرورت شي نو هېڅ پروا يې نشته لکن د انسان سره به د هغه په لوړه کېښودلو حرص وي

(چې کله موقع پیدا شي نو بیا به یې په لوړ ځای کې کیږدي)

## د قرآن کریم نسخه مچي کول

ترڅو پورې چې کېدلی شي د قرآن کریم عزت کول په مسلمان واجب دي هغه که په هر ډول وي نو د قرآن کریم د مچي کولو په اړه هم علماوو ویلي دي چې دا څه ضروري او واجب کار نه دی ددې امله به چاته وربانديې خامخا امر نه کیږي چې مچي کړه او که څوک یې د عزت او احترام په نیت کوي نو ناروا ورته څوک نشي ویلی په صحابه وو کې د حضرت عکرمة ❼ په حق کې نقل شوي دي :

وكان يقبّل المصحفَ ويبكي .. ويقول : كلام ربي كلام ربي ...واحتج به الإمام أحمدَ على جواز تقبيل المصحف ومشروعيته (البداية والنهاية)

ترجمه : عکرمه به د قرآن کریم (د آیاتونو) نسخه مچي کوله او ژړل به یې ویل به یې : زما د رب کلام دی زما د رب کلام دی امام احمد ابن حنبل رحمه الله دا روایت د قرآن کریم په مچي کولو باندې دلیل کړی دی .

په بل روایت کې نقل شوي دي :

عن ابن أبي مليكة قال كان عكرمة بن أبي جهل يأخذ المصحف فيضعه على وجهه ويبكي

ويقول كتاب ربي وكلام ربي وفي لفظ كلام ربي كلام ربي

د ابن ابي مليكة نه روايت دى هغه فرمايل : عكرمه بن ابي جهل به قرآن كريم را اخستو او په مخ باندې به يې كېښودو او ژړل به يې ويل به يې چې زما د رب كتاب دى زما د رب كلام دى

د يو روايت له مخې ويل به يې زما د رب كلام دى زما درب كلام دى .

ځينو بيا دې روايتونو ته ضعيف ويلي دي لكن د قرآن كريم د نسخې د مچي كولو په اړه د علماوو درى نظريې دي .

## لومړى نظريه (مستحب دي)

دا نظريه د شافعي علماوو ده چې د هغوى د ډلې څخه امام نووي ، ابن حجر الهيتمي، الزركشي (د البرهان مصنف) رحمهم الله دى او پدې اړه يو روايت د حضرت امام احمد ابن حنبل رحمه الله هم دى .

دوى وايي :

الف : روي عن عمر -رضي الله عنه- أنه كان يأخذ المصحف كل غداة ويقبله، ويقول: عهد ربي ومنشور ربي عز وجل

ترجمه : د حضرت عمر ❼ نه روايت شوى دى چې ده به هر سحر د قرآن كريم نسخه ور اخيسته

مچي كوله به يې او ويل به يې دا زما د رب (الله) عهد دی او دا زما د رب منشور دی

ب: كان عثمان -رضي الله عنه- يقبل المصحف ويمسحه على وجهه (شرح سنن ابن ماجه للسيوطي)

ترجمه : حضرت عثمان ❼ به قرآن كريم مچي كولو او په مخ باندې به يې موښلو .

ج: د عكرمه پورتنی روايت هم دوی په خپلو دليلونو كې ذكر كوي .

د: د حجر اسود چې يو كانی دی دهغه مچې كول دهغه كانې عزت كول دي نو كه مونږ قرآن كريم مچي كړو نو دا هم ددې عزت كول دي .

## دوهمه نظريه (روا دي )

دوهمه نظريه داده چې د قرآن كريم مچي كول صرف روا دي كه يې څوک وكوي نو ګناه وربانديې نشته دا رايه د حنفيانو علماوو رحمهم الله ده او په همدې اړه يو روايت د حضرت امام احمد ابن حنبل رحمه الله هم دی او د شافعي مذهب د علماوو څخه د السبكي رحمه الله ، ابن تيميه، الشوكاني، د سعودي د مفتي اعظم ابن باز رحمه الله هم دا رايه وه .

دوی وايي :

په پورتنی رايه كې چې كوم روايتونه تېر شول دهغې نه دا نه معلوميږي چې دا كار حضرت

عکرمة، حضرت عمر، حضرت عثمان رضی الله عنهم اجمعين د عبادت په توګه کولو بلکه هغه دوی د قرآن کريم له آيتونو سره صرف خپله مينه ښکاره کوله او که چېرته دا عبادت وای نو بيا به يې خلکو ته هم ويلي وو چې داسې وکوي او شريعت به هم وربانديې امر کړی وای .

## دريمه نظريه (مکروه دي )

د قرآن کريم د مچي کولو په اړه دريمه رايه داده چې د قرآن کريم مچي کول مکروه دي دا د مالکي علماوو نظر دی .
پدې کې غوره قول دادی چې نه حرام او مکروه دي او نه مستحب او واجب بلکه د قرآن کريم مچي کول صرف روا دي او پدې مچي کولو سره مسلمان د قرآن کريم د نسخې سره مينه ښکاره کوي نو روا طريقه يې ده .

## د قرآن کریم نسخې ته عزت ورکول

که د قرآن کریم په نسخه باندې د عزت او احترام لپاره عطر ولګول شي او یا قیمتي پوښ ورته جوړ کړل شي نو دا یې هم ددې امله چې د قرآن کریم عزت دی نو په روا والي کې یې شک نشته په (البرهان في علوم القرآن کې لیکلي دي)

ويستحب تطييب المصحف وجعله على كرسي، ويجوز تحليته بالفضة إكراما له على الصحيح، روى البيهقي بسنده إلى الوليد بن مسلم قال سألت مالكا عن تفضيض المصاحف فأخرج إلينا مصحفا فقال حدثني أبي عن جدي أنهم جمعوا القرآن في عهد عثمان ــ رضي الله عنه ــ وأنهم فضضوا المصاحف على هذا ونحوه، وأما بالذهب فالأصح يباح للمرأة دون الرجل وخص بعضهم الجواز بنفس المصحف دون علاقته المنفصلة عنه والأظهر التسوية.

ترجمه : د قرآن کریم خوشبویه کول مستحب دي په چوکۍ باندې یې کېښودل مستحب دي د سپینو زرو نه پوښ ورته جوړول قرآن کریم ته دعزت ورکولو په موخه روا دي بیهقي په خپل سند چې ولید بن مسلم ته رسېدلی روایت کړی دی هغه فرمایي : ما مالک نه پوښتنه وکوله چې د قرآن

كريم نسخې ته د سپينو زرو پوښ وركول روا دي؟
هغه مونږ ته د قرآن كريم يوه نسخه را وويسته بيا يې وويل : ماته مې پلار زما له نيكه نه روايت كړی دی چې دوی د حضرت عثمان ❼ په دور كې قرآن كريم را ټول كړو او دوی د قرآن كريم نسخو ته پدې ډول باندې د سپينو زرو پوښونه جوړكړل او د سرو زرو نه پوښ ورته جوړول د صحيح قول له مخې ښځې ته روا دي نر ته ندي روا او ځينو په هغه صورت كې روا كړي دي چې دا پوښ د قرآن كريم سره لګېدلی وي او ورپورې ځړېدلې څه شی نه وي لكن غوره خبره داده چې په هر ډول يې ښائسته كول روا دي .

## د قرآن كريم نسخې ته پښې ور غزول

بيا بيا مخكې تېر شول چې په مسلمان باندې هر هغه څه كول لازم دي چې په هغه كې د قرآن كريم عزت او درناوی وي او داسې كار به نه كوي چې د قرآن كريم اهانت پكې وشي يو دهغه كارونو څخه دادی چې انسان كيني يا څملي اود قرآن كريم د نسخې طرف ته پښې ور اوږدې كړي او يا هغې الماری ته پښې ور غزوي چې په هغې كې د قرآن كريم نسخې ايښې وي او يا كله انسان په داسې ځای كې كيني چې په هماغه مجلس كې د قرآن كريم نسخه تر ده څخه ښكته ايښې وي ددې ټولو

نه به مسلمان ځان ساتي ځينې خلک وايي چې په زړه کې دې د قرآن كريم توهين نه وي نو بيا كه پښې هغه خوا ته ور وغزوې او يا ترينه لوړ كينې نو پروا نه كوي پدې اړه علماء فرمايي :

ومدّ الرجل إلى المصحف أو إلى الحوامل التي فيها المصاحف أو الجلوس على كرسي أو ماصة تحتها مصحف يُنافي كمال التعظيم لكلام الله عز وجل ، ولهذا قال أهل العلم : إنه يُكره للإنسان أن يمدّ رجله إلى المصحف هذا مع سلامة النية والقصد .

أما لو أراد الإنسان إهانة كلام الله فإنه يكفر ؛ لأن القرآن الكريم كلام الله وإذا رأيتم أحداً قد مدّ رجليه إلى المصحف سواء كان على حامل أو على الأرض ، أو رأيتم أحداً جالساً على شيء وتحته مصحف ، فأزيلوا المصحف عن أمام رجليه أو عن الكرسي الذي هو جالس عليه ، أو قولوا له : لا تمدّ رجليك إلى المصحف . احترم كلام الله عز وجل ( شيخ ابن عثيمين رحمه الله )

ترجمه : د قرآن كريم د نسخې لوري ته پښې غزول او يا د هغه الماريو خوا ته پښې ور غزول چې هلته د قرآن كريم نسخې ايښې وي او يا پداسې چوكۍ كېناستل چې هلته د قرآن كريم نسخه لاندې وي د ا ټول كارونه د كلام الله د تعظيم خلاف دي نو ددې ا مله اهل العلم فرمايي د انسان لپاره دا مكروه دي چې پښې د قرآن كريم

د نسخې لوري ته ور اوږدې کړي دا په هغه صورت کې مکروه دي چې دده نيت پاک وي او د اهانت نيت يې نه وي او که چېرته يې د قرآن کريم د نسخې طرف ته او يا د هغه الماری طرف ته چې هلته د قرآن کريم نسخې ايښې وي د اهانت په نيت پښې ور اوږدې کړې نو بيا دا کفر دی ځکه قرآن کريم د الله کلام دی او د الله د کلام اهانت په شرع کې کفر دی .

نو چې کله مو داسې څوک وليدل چې د قرآن کريم د نسخې لوري ته يې پښې ور غزولې وې که په زمکه وي او که په الماری کې وي او يا مو څوک وليدل چې ناست وو او د قرآن کريم نسخه ترېنه لاندې وه نو د هغه کس د پښو څخه او يا تر هغه لوړ ځای نه شکته د قرآن کريم نسخه لرې کړئ او ده ته ووایاست چې د قرآن کريم د نسخې لوري ته پښې مه ور غزوه د الله د کلام قدر وکوه . (شيخ ابن عثيمن رحمه الله)

## د تــلاوت سجده

⇦ پـه قـرآن کـريـم کـې د تـلاوت سجدې څـوارلـس دي پـدې اړه تـفـصيـل يـو ځل ددې سلسلـې پـه دوهم کـتـاب کـې د مـانـځه پـه بـرخـه کـې هم تـېر شوی وو لـکن د قـرآن کـريـم د احـکـامـو او مـسئـلـو د بـحث د تـکـمـيـل پـه مقـصد يـې يـو ځل بـيـا را ګـرځـوم .

۱. د سورت اعراف پـه آخر کـې آيـة :

إِنَّ ٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ لَا يَسۡتَكۡبِرُونَ عَنۡ عِبَادَتِهِۦ وَيُسَبِّحُونَهُۥ وَلَهُۥ يَسۡجُدُونَ ۩ ﴿٢٠٦﴾

۲. پـه سورة الـرعد کـې :

وَلِلَّهِ يَسۡجُدُ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ طَوۡعًا وَكَرۡهًا وَظِلَٰلُهُم بِٱلۡغُدُوِّ وَٱلۡأٓصَالِ ۩ ﴿١٥﴾

۳. پــه ســورة الــنحل کــې:

تَخَافُونَ رَبَّهُم مِّن فَوْقِهِمْ وَيَفْعَلُونَ مَا يُؤْمَرُونَ ۩ ﴿٥٠﴾

٤. پــه ســورة الاسراء کــې:

وَيَخِرُّونَ لِلْأَذْقَانِ يَبْكُونَ وَيَزِيدُهُمْ خُشُوعًا ۩ ﴿١٠٩﴾

٥. پــه ســورة مــريــم کــې

أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ أَنْعَمَ ٱللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ ٱلنَّبِيِّـۧنَ مِن ذُرِّيَّةِ ءَادَمَ

وَمِمَّنْ حَمَلْنَا مَعَ نُوحٍ وَمِن ذُرِّيَّةِ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْرَٰٓءِيلَ وَمِمَّنْ

هَدَيْنَا وَٱجْتَبَيْنَآ ۚ إِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ ءَايَٰتُ ٱلرَّحْمَٰنِ خَرُّواْ سُجَّدًا

وَبُكِيًّا ۩ ﴿٥٨﴾

٦. پــه ســورة حج کــې

أَلَمْ تَرَ أَنَّ ٱللَّهَ يَسْجُدُ لَهُۥ مَن فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَن فِي

ٱلْأَرْضِ وَٱلشَّمْسُ وَٱلْقَمَرُ وَٱلنُّجُومُ وَٱلْجِبَالُ وَٱلشَّجَرُ

وَٱلدَّوَآبُّ وَكَثِيرٌ مِّنَ ٱلنَّاسِ ۖ وَكَثِيرٌ حَقَّ عَلَيْهِ ٱلْعَذَابُ ۗ وَمَن

يُهِنِ ٱللَّهُ فَمَا لَهُۥ مِن مُّكْرِمٍ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ۩ ﴿١٨﴾

٧. په سورة الفرقان كې:

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ ٱسْجُدُوا۟ لِلرَّحْمَٰنِ قَالُوا۟ وَمَا ٱلرَّحْمَٰنُ أَنَسْجُدُ

لِمَا تَأْمُرُنَا وَزَادَهُمْ نُفُورًا ۩ ﴿٦٠﴾

٨. په سورة النمل كې:

ٱللَّهُ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ ٱلْعَرْشِ ٱلْعَظِيمِ ۩ ﴿٢٦﴾

٩. په سورة السجدة كې:

إِنَّمَا يُؤْمِنُ بِـَٔايَٰتِنَا ٱلَّذِينَ إِذَا ذُكِّرُوا۟ بِهَا خَرُّوا۟ سُجَّدًا

وَسَبَّحُوا۟ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ وَهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ ۩ ﴿١٥﴾

١٠. په سورة ص كې:

قَالَ لَقَدۡ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعۡجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِۦۖ وَإِنَّ كَثِيرٗا مِّنَ

ٱلۡخُلَطَآءِ لَيَبۡغِي بَعۡضُهُمۡ عَلَىٰ بَعۡضٍ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ

ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَقَلِيلٞ مَّا هُمۡۗ وَظَنَّ دَاوُۥدُ أَنَّمَا فَتَنَّٰهُ فَٱسۡتَغۡفَرَ

رَبَّهُۥ وَخَرَّۤ رَاكِعٗا وَأَنَابَ ۩ ﴿٢٤﴾

۱۱. په سورة حم السجدة کې:

فَإِنِ ٱسۡتَكۡبَرُواْ فَٱلَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ يُسَبِّحُونَ لَهُۥ بِٱلَّيۡلِ

وَٱلنَّهَارِ وَهُمۡ لَا يَسۡـَٔمُونَ ۩ ﴿٣٨﴾

۱۲. په سورة النجم کې:

فَٱسۡجُدُواْ لِلَّهِ وَٱعۡبُدُواْ ۩ ﴿٦٢﴾

۱۳. په سورة انشقت (انشقاق) کې:

وَإِذَا قُرِئَ عَلَيۡهِمُ ٱلۡقُرۡءَانُ لَا يَسۡجُدُونَ ۩ ﴿٢١﴾

۱٤. په سورة اقرأ (علق ) کې:

كَلَّا لَا تُطِعْهُ وَٱسْجُدْ وَٱقْتَرِب ۩ ﴿١٩﴾

⇦ پدې پورتنيو آيتونو سره په آورېدونكي او ويونكي باندې سجده واجبه ده كه آورېدونكي يې د تلاوت د آورېدلو نيت كړى وي او كنه سجده واجبيږي. (الهداية)

⇦ د تلاوت د سجدې د آيت په تصور اويا صرف د شونډو په ښورولو سره نه واجبيږي بلكه په هغه صورت كې واجبيږي چې تلاوت كونكى يې پداسې ډول تلاوت كوي چې كه شونډو ته يې غوږ ورنږدې كړل شي نو د آورېدلو امكان يې وي .

⇦ كه چا د مختلفو خلكو نه د سجدې د آيت يو يو ټكى واورېدو نو بيا وربانذې سجده نه ده واجبه . (فتاوى قاضي خان)

⇦ كه چا آيت ولوست لكن هغه لفظ يې ونه لوست په كوم چې سجده واجبيږي ( په قرآن كريم كې وربانذې نښه كړل شوې وي) نو بيا هم وربانذې سجده واجبه نه ده او كه نور آيت يې ونه لوست صرف هماغه يو لفظ يې ولوست بيا هم سجده وربانذې نشته ترڅو د آيت اكثر برخه ونه لولي .

⇦ هغه كسان چې د قرآن كريم آيتونه ليكي او د سجدې آيت پكې وليكي سجده وربانذې نه لازميږي . (فتاوى قاضي خان)

⇦ کله چې امام د سجدې آیت په مانځه کې ووایي نو چې کله آیت ختم شي نو په همغه ځای به سجده کوي او مقتدي که آیت آورېدلی وو او کنه سجده به ورسره کوي .

⇦ او که د سجدې آیت یې ولوستلو بیا یې رکوع وکوله نو همدا د مانځه سجده ورته کفایت کوي بیا به د تلاوت سجده نه کوي.

⇦ او که د تلاوت د سجدې نه یې وروسته درې آیتونه ولوستل نو بیا د مانځه سجده ورته کفایت نه کوي بیا د تلاوت سجده ونشوه .

⇦ بیا به اوس د تلاوت سجده بېله داسې کوي چې شکته به شي سجده به وکوي بېرته به بیا را پاڅیږي یو څو آیتونه به نور ووایي بیا به رکوع وکوي او که یې د را پاڅېدلو نه وروسته متصله رکوع وکوله نو هم صحیح ده.

⇦ په کوم ځای کې چې د تلاوت سجده د سورت په آخر کې ده نو کولی شي چې هغه سورت ختم کړي او بیا رکوع او سجده وکوي او که یې خوښه وه نو د تلاوت سجده د وکوي بیا د را پاڅیږي پاتې سورت د ختم کړي بیا دې رکوع وکوي او خپل مونځ د مخ په وړاندې بوزي.

⇦ که د سجدې آیت یې تلاوت کړو او دېته یې بېله سجده کول نه غوښتل بلکه د همدې سجدې لپاره یې رکوع کول غوښتل نو نیت یې ضروري دی یا به یې رکوع ته له تللو نه وړاندې د انیت وي او یا به په رکوع کې دا نیت کوي چې دی پدې

ركوع سره د تلاوت سجده هم كول غواړي او كه نه يې په ولاړه دا نيت وكولو او نه يې په ركوع كې دا نيت شو نو بيا د تلاوت سجده صحيح نه ده.

⇦ او كه دا نيت يې د ركوع نه د را پورته كېدلو نه وروسته پيدا شو بيا هم نه صحيح كيږي د تلاوت سجده نه ده شوې.

⇦ كه امام په خفيه مانځه كې د سجدې آيت ولوستلو نو بيا به هم په هماغه ځاى سجده كوي او مقتدي به يې هم ورسره كوي لكن مستحب داده چې امام بايد په خفيه مانځه كې د سجده تلاوت لرونكى آيت ونه لولي.

⇦ كه امام په جهري مانځه كې د سجدې لرونكى آيت ولوستلو او داسې چا واورېدو چې هغه له دوى سره په مانځه كې نه وي نو په هغه باندې هم سجده واجبيږي. (الجوهر النيرة/ الهداية)

⇦ كه مقتدي په مانځه كې د سجدې آيت ولوست سجده پرې نه واجبيږي.

⇦ كه څوک په مانځه ولاړ وو بل چا تلاوت كولو د سجدې آيت يې ولوستلو په مونځ كونكي سجده واجبه شوه لكن په مانځه كې به يې نه كوي كه يې په مانځه كې سجده وكوله نو دا سجده يې نه كيږي او مونځ يې هم نه خرابيږي نو د مانځه نه چې فارغ شي بيا به سجده وكوي.

⇦ په يو مجلس كې يې كه يو آيت بيا بيا واورېدو او يا يې تلاوت كړو نو يوه سجده

وربانديي واجبيږي او که په مختلفو مجلسونو کې يې يو آيت واورېدو نو متعددې سجدې به کوي چې هرڅو مجلسونه دي همدارنګه که په يو مجلس کې يې مختلف آيتونه واورېدل نو متعددې سجدې به کوي.

⇦ که تلاوت کونکی په يو ځای ناست وو او د آورېدونکي ځای بدل شو نو په تلاوت کونکي يوه سجده ده او په آورېدونکي متعددې دي او که آورېدونکی په يو ځای ناست وو او تلاوت کونکی ګرځېدو د هغه ځای بدل شو نو په تلاوت کونکي متعددې او په آورېدونکي صرف يوه سجده ده.

⇦ په يوه کوټه کې يا په يوه لوی دهليز کې د يو ځای نه په بل ځای ته تللو باندې مجلس نه بدليږي همدارنګه که د جومات د يو کونج نه لاړو بل کونج ته هلته يې بيا د سجدې آيت تلاوت کړو نو دا ټول يو مجلس ګڼل کيږي. (عالمګيري)

⇦ که څوک په لاره روان وو او د سجدې آيت يې بيا بيا تلاوت کولو نو هرځل وربانديې نوې سجده واجبيږي همدارنګه که چا په بحر کې لامبو وهله او د سجدې تلاوت يې تلاوت کولو نو په هر ځل وربانديې بېله سجده واجبيږي.

⇦ او که په وړوکي حوض کې يې لامبو وهله او د حوض يو کونج او بل کونج ته تللو نو سجده نه تکرار کيږي .

- كه چا يو ځل د سجدې آيت په مانځه كې ولوست او په مانځه كې يې سجده وكوله او د سلام نه وروسته يې فوراً بيا تلاوت كړو كه په هماغه ځاى كې ناست وو او يا لرې شوى وو نو بيا به سجده كوي.
- كه په كوم مجلس كې تلاوت كونكي د سجدې آيت تلاوت كړو او ډېرو كسانو واورېدو نو ښه خبره داده چې ټول د په يو ځاى سجده وكوي او تلاوت كونكى دې ورته مخكې شي او نور دې ورپسې صف جوړ كړي .
- كه په هغه وخت كې چې تلاوت كولو په كوم وخت كې چې مونځ مكروه وي (د لمر راختلو په وخت، د غرمې په وخت ، د لمر لوېدلو په وخت) نو سجده كول اوس مكروه نه دي او كه مخكې ددې وخت نه يې تلاوت كړى وو اوس پدې وخت كې سجده كول مكروه دي.

# د تلاوت د سجدې کولو طریقه

- قبلې ته به مخامخ ودریږي .
- لاسونه به څوړند ونیسي او نیت به وکوي که په خوله سره نیت ووایې نو ښه خبره ده:
- که په عربي نیت کولی شي نو داسې دې ووايي : نویت ان اسجد لسجدة تلاوت القرآن آمنت بالرحمن ور ضيت بالاسلام متوجهاً الی جهة الکعبة الشریفة.

ترجمه : نیت مې کړی د تلاوت سجده کوم په الله مې ایمان راوړی په اسلام باندې راضي یم مخ مې د کعبې شریفې په لوري.

- او که دومره اوږد نشي ویلی نو لنډ دې ووایي : اسجد لله سجدة التلاوة (د الله لپاره د تلاوت سجده کوم) (السراج الوهاج)
- او یا دې دېته ورته الفاظ ووایي.
- الله اکبر به ووایي سجدې ته به لاړ شي .
- درې ځله به سبحان ربی الاعلی ووایي تر دریو به یې نه کموي او که یې زیات ویل نو ثواب دی او په الله اکبر سره به ترینه را پورته شي .

⇦ د تلاوت په سجده کې غوړونو ته لاسونه پورته کول نشته نه پکې التحیات ته کېناستل او نه پکې سلام شته .

⇦ کوم شیان چې مونځ ماتوي دا سجده هم ماتوي که یې پکې خبرې وکولې ، پکې بې اودسه شو او یا هرڅه داسې څه وشول چې د مانځه په ماتونکو شیانو کې تېر شول نو دا سجده به بیا کوي صرف که یې پدې سجده کې په زوره وخندل نو سجده یې خرابه شوه بیا به یې کوي اودس ورسره نه ماتیږي او که په مانځه کې یې په زوره وخندل نو اودس ورسره ماتیږي.

⇦ چې څوک سورت تلاوت کوي او د سجدې آیت پکې پرېږدي په هر صورت مکروه دی او که څوک د مانځه نه بهر صرف د سجدې آیت تلاوت کوي نو مکروه نه دی لکن غوره خبره دا ده (مستحب ده) چې یو یا دوه آیتونه ورسره نور هم ملګري کړي.



# معلومات

⇦ د قرآن کریم سورتونه ۱۱٤

⇦ د قرآن کریم سپارې ۳۰

⇦ د قرآن کریم حزبونه ٦۰

⇦ په قرآن کریم کې د تلاوت سجدې ۱٤

⇦ په قرآن کریم کې ټولې بسم الله ګانې ۱۱٤

⇦ مکي سورتونه ۸۲

⇦ مدني سورتونه ۲۰

⇦ هغه سورتونه چې په مکي او مدني کېدلو کې یې اختلاف دی ۱۲

⇦ مکي آیتونه (هغه آیتونه چې په مکه کې نازل شوي) ٤٤۷۰

⇦ مدني آیتونه (هغه آیتونه چې په مدینه کې نازل شوي) ۱۷۲۹

⇦ هغه آیتونه چې نه په مکه او نه په مدینه کې نازل شوي دي ۳۷

⇦ په قرآن کریم کې تر ټولو نه اوږد سورت سورة البقرة دی ۲۸٦ آیتونه لري .

⇦ په قرآن کریم کې ۲۹ سورتونه په حروف مقطعات سره شروع شوي دي .

⇦ درى سورتونه په يا ايّها النبي (اى نبي) سره شروع شوي دي

الاحزاب، الطلاق، التحريم .

⇦ درى سورتونه په يا ايها الذين امنوا (اى مومنانو) سره شروع شوي

دي: المائدة، الحجرات ، الممتحنة .

⇦ پنځه سورتونه په قل (ووايه ) سره شروع شوي دي :

الجن ، الكافرون، التوحيد، الاخلاص، الفلق، الناس.

⇦ دوه سورتونه په يا ايها الناس (اى خلكو) سره شروع شوي دي :

النساء ، الحج

⇦ څلور سورتونه په انا (مونږ) سره شروع شوي دي

الفتح، نوح، القدر، الكوثر.

⇦ پنځلس سورتونه په قسم سره شروع شوي دي :

الذاريات ، الطور ، النجم ، المرسلات ، النازعات ، البروج ، الطارق ، الفجر ، الشمس ، الليل ، الضحى ، التين ، العاديات ، العصر ، الصافات.

پنځه سورتونه په الحمد سره شرع كيږي :

الفاتحة ، الانعام ؤ الكهف ، سبأ وفاطر

⇦ په قرآن کريم کې تر ټولو نه لنډ سورت سورة الکوثر دى ۳ آيتونه لري .

⇦ په قرآن کريم کې هر سورت په بسم الله سره شروع کيږي بغير د سورة التوبة نه او په سورة النمل کې دوه بسم الله ګانې دي يوه د سورت په شروع کې او بله په سورت کې د ننه په ۳۰ آيت کې **انَّهُ مِن سُلَيْمَانَ وَإِنَّهُ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ.**

⇦ په پنځلسمه پاره کې د و وليتلطف کلمه د قرآن نيمايي ده او پدې کلمه کې د ت په ټکي باندې قرآن کريم نيمايي کيږي .

## مکي سورتونه

مکي سورتونه ۸۲ دي په لاندې ډول :

الأنعام، الأعراف، يونس، هود، يوسف، إبراهيم ، الحجر، النحل، الإسراء، الكهف، مريم، طه، الأنبياء، الحج، المؤمنون، الفرقان، الشعراء، النمل، القصص، العنكبوت، الروم، لقمان، السجدة، سبأ، فاطر، يس، الصافات، ص، الزمر ، غافر، فصلت، الشورى، الزخرف، الدخان، الجاثية، الأحقاف، ق، الذاريات، الطور، النجم، القمر، الواقعة، الملك، القلم، الحاقة، المعارج، نوح، الجن، المزمل، المدثر، القيامة، الإنسان، المرسلات، النبأ، النازعات، عبس، التكوير، الانفطار، الانشقاق، البروج، الطارق، الأعلى، الغاشية، الفجر، البلد، الشمس، الليل، الضحى، الانشراح، التين، العلق، العاديات، القارعة، التكاثر، العصر، الهمزة، الفيل، قريش، الماعون، الكوثر، الكافرون، والمسد.

# مدني سورتونه

مدني سورتونه شل دي په لاندې ډول .

**البقرة، آل عمران، النساء، المائدة، الأنفال، التوبة، النور، الأحزاب، محمد، الفتح، الحجرات، الحديد، المجادلة، الحشر، الممتحنة، الجمعة، المنافقون، الطلاق، التحريم، والنصر.**

⇦ هغه سورتونه چې اختلاف دی پکې هغه ۱۲ دي ډول :

**الفاتحة، الرعد، الرحمن، الصف، التغابن، المطففين، القدر، البينة، الزلزلة، الإخلاص، الفلق، والناس.**

⇦ د الشهر لفظ (میاشت ته وایي) په قرآن کریم کې ۱۲ ځله یاد کړل شوی دی لکه په کال کې چې میاشتې هم ۱۲ دي .

⇦ د ابلیس ټکی په قرآن کریم کې ۱۱ ځله یاد کړل شوی دی او ۱۱ ځله هم د هغه څخه د پناه غوښتلو امر شوی دی .

⇦ د مصیبت او د هغه نه مشتق شوي الفاظ په قرآن کریم کې ۷۵ ځله تکرار شوي دي همدارنګه د شکر او د هغه نه مشتق الفاظ هم ۷۵ ځله تکرار شوي دي .

⇦ الدین او ددې نه نور مشتق لفظونه په قرآن کریم کې ۹۲ ځله یاد کړل شوي دي همدارنګه المساجد او ترینه مشتق نور الفاظ هم په قرآن کریم کې ۹۲ ځله یاد شوي دي .

⇦ د زکات لفظ په قرآن کریم کې ۳۲ ځله یاد کړل شوی دی په همدې ډول د البرکات لفظ په قرآن کریم کې ۳۲ ځله یاد شوی دی .

⇦ الشدة (سختي) په قرآن کریم کې ۱۱٤ ځله یاده کړل شوېده او (الصبر) هم ۱۱٤ ځله یاد کړل شوی دی .

⇦ النطفه (مني) په قرآن کریم کې ۱۲ ځله یاد شوي د ي په همدې ډول باندې الطین (خټه) هم ۱۲ ځله یاد شوي دي .

⇦ الالباب (عقلونه) په قرآن کریم کې ۱٦ ځله یاد کړل شوی دی په همدې ډول باندې الافئدة (زړونه) هم ۱۲ ځله یاد کړل شوي دي .

⇦ الملائکه لفظ په قرآن کریم کې ۸۸ ځله او الشیاطین هم ۸۸ ځله یاد کړل شوي دي .

⇦ الدنیا په قرآن کریم کې ۱۱۵ ځله همدارنګه الآخرة هم ۱۱۵ ځله یاد کړل شوی دی .

⇦ الحیاة (ژوند) لفظ په قرآن کریم کې ۱٤٥ ځله همدارنګه الموت (مرګ) لفظ په قرآن کریم کې ۱٤٥ ځله یاد شوی دی .

⇦ الضالون (ګمراهان) لفظ په قرآن کریم کې ۱۷ ځله یاد شوی دی همدارنګه الموتی (مړي) د همدې عدد مطابق یاد شوي دي .

⇦ النفع (فایده) او ددې نه مشتق نور لفظونه په قرآن کریم کې ۵۰ ځله یاد شوي دي

همدارنګه الفساد او د هغې نه مشتق الفاظ ٥٠ ځله یاد شوي دي .

⇦ د الرسل لفظ او الناس لفظ دواړه په قرآن کریم کې ٣٦٨ ځله تکرار شوي دي .

⇦ المسلمون او الجهاد دواړه لفظونه په قرآن کریم کې ٤١ ځله یاد شوي دي .

⇦ العقل او النور دواړه لفظونه په قرآن کریم کې ٤٩ ځله یاد شوي دي .

⇦ اللسان (ژبه) او الموعظة (پند) دواړه لفظونه په قرآن کریم کې ٢٥ ځله یاد شوي دي .

⇦ الجهر (په زوره) او العلانیة (په ښکاره سره) لفظونه دواړه په قرآن کریم کې ١٦ ځله تکرار شوي دي .

⇦ محمد مبارک نوم په قرآن کریم کې ٤ ځله یاد شوی دی همدارنګه الشریعة لفظ هم ٤ ځله یاد شوی دی .

⇦ الرجل (سړی) په قرآن کریم کې ٢٤ ځله یاد شوی دی همدارنګه (المرأة) ښځه ٢٤ ځله یاده شویده .

## د قرآن کریم موضوع ګانې

په قرآن کریم کې ځینې داسې موضوع ګانې دي چې له هغې نه ډیر بحث شوی دی :

عقائد - (1443) آیتونه

توحید- (1102) آیتونه

توراة- (1025) آیتونه

عبادات- (4110) آیتونه

اجتماعي نظام - (848) آیتونه

دین- (826) آیتونه

تهذیب الاخلاق- (803) آیتونه

د رسول الله ﷺ شان - (405) آیتونه

تبلیغ -(400) آیتونه

قرآن کریم- (390) آیتونه

نصاری- (161) آیتونه

بني اسرائیل- (110) آیتونه

علوم او فنون - (80) آیتونه

نصر- ( 71 ) آیتونه

شریعة- (29) آیتونه

تاریخ- (27) آیتونه

تجربې- (9) آیتونه

## نوري فائدې

⇦ هغه سورت سورة البقرة دی چې په کوم کور کې د ورځې ولوستل شي تر دریو ورځو پورې شیطان هغه کور ته نه ورځي او په کوم کور کې چې د شپې ولوستل شي تر دریو شپو پورې هلته شیطان نه ورځي .

⇦ الزلزلة والكافرون هغه دوه سورتونه دي چې د تلاوت ثواب يې د قرآن كريم د څلورمې برخې د تلاوت سره برابر دی .

⇦ رسول الله ﷺ فرمايي : كه څوک غواړي چې قيامت داسې محسوس كړي لكه په سترګو چې ورته ګوري نو هغه دې {إذا الشمس كورت} او {إذا السماء انفطرت} او {إذا السماء انشقت} سورتونه تلاوت كړي . أخرجه أحمد.

⇦ په يو آيت كې الله رسول الله ﷺ ته دومره عزت وركړی دی چې له خپلو اسماء الحسنى څخه يې دوه نومونه دده ﷺ لپاره استعمال كړي رَؤُوفٌ او رحِيمٌ .

سورة التوبه آية ١٢٨

لَقَدْ جَاءكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَؤُوفٌ رَّحِيمٌ .

ترجمه : خامخا په تحقيق سره راغلی دی تاسو ته يو رسول له جنسه ستاسې چې ډېر سخت درونند دی پر ده باندې هغه كار چې تاسې تكليف مومئ (له هغه) ډېر حرصناک دی په (هدايت د) تاسې خاص پر مؤمنينو باندې نهايت شفيق ډېر مهربان دی .

⇦ په يو آيت كې الله په عجيبه ډول نصيحت كړی دی اول يې په دريو شيانو باندې امر كړی دی بيا يې له دريو شيانو څخه منع كړېده او

بيا يې خلکو ته پند ورکړی دی الله فرمايي
:
سورة النحل آية ٩٠

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالإِحْسَانِ وَإِيتَاء ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاء وَالْمُنكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ

ترجمه : بېشکه الله امر (حکم) کوي په عدل (انصاف کولو) سره او په احسان (نيکي کولو) سره او په ورکړې سره خاوندانو د خپلوۍ ته او منع کوي له قبيحو او بدو کارونو څخه او له سر کښي څخه ، پند درکوي تاسې ته (په دغو اوامرو او نواهيو سره) د پاره ددې چې تاسې پند واخلئ (په دغو سره) .

⇦ سورة انعام هغه سورة دی چې ټول په يو ځل په مکه مکرمه کې د شپې نازل شو او اويا زره ملائکې ورسره راغلې وې ټولو تسبيح ويله .

د جهاد په اړه چې اول آيت نازل شوه هغه په سورة حج کې دی الله فرمايي :
سورة الحج آية ٣٩

أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَى نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ

ترجمه : هغه کسانو ته چې وربانديې ظلم شوی دی اجازه شويده چې دی جنګ وکوي او الله د دوی په مرسته بانديې قادر دی .

⇦ رسول الله ﷺ فرمايي : په قرآن کريم کې يو سورت دی چې څوک يې تلاوت کوي په قيامت کې

دهغه لپاره تر هغه وخته پورې سپارښ کوي ترڅو يې هغه خپل لوستونکی جنت ته ننه ايستلی نه وي دا هغه سورت دی چې په سر کې يې دي تبارک الذي بيده الملک . (رواه الطبراني)

## د قرآن كريم نور نومونه

⇦ د قرآن كريم نور نومونه هم شته چې پخپله په قرآن کې ورته ياد کړل شوي دي :

الفرقان- الكتاب- النور- التنزيل- الكلام- الحديث- الموعظة- الهادي- الحق- البيان- المنير- الشفاء- العظيم- الكريم- المجيد- العزيز- النعمة- الرحمة- الروح- الحبل- القصص- المهيمن- الحكم- الذّكر- السراج- البشير- النذير- التبيان- العدل- المنادي- الشافي- الذكرى- الحكيم.

## په قرآن كريم کې ياد شوي پيغمبران (عليهم السلام)

⇦ په قرآن كريم کې د ۲۵ پيغمبرانو نومونه ذکر شوي دي .

محمد- آدم - ابراهيم - اسماعيل - الياس- ادريس- ايوب - عيسى- موسى- نوح - لوط - يوسف - يعقوب - يوشع - هود - يونس- صالح - شعيب - داوود - يحيى- زكريا - ذو الكفل - سليمان - هارون - اسماعيل - صادق الوعد عليهم الصلاة و السلام.

⇦ د الحمد لله (سورة الفاتحة) لپاره ځيني نور نومونه هم شته :
ام الكتاب - السبع المثاني - الكنز - الوافية - الكافية - الشافية.

## په قرآن كريم كې د رسول الله ﷺ صفتونه

⇦ **په قرآن كريم كې د رسول الله ﷺ هم مختلف او متعدد صفتونه شوي دي :**
أحمد - الأمين - أول المؤمنين- أول المسلمين - أول العابدين - البرهان - البشير- خاتم النبيين- داعياً الى الله - رحمةً للعالمين - رحيم - رسول - رسول الله - رسول امين - رسول مبين - رسول كريم - رؤوف - سراجاً منيراً - شاهداً - شهيد - صاحب - عبد الله - مبشّر - محمد - المدثِّر - المزمِّل - مذكّر - منذر - ناصح أمين - النبي - النبي الأمّي - نذير - النذير المبين - وليّ صلى الله عليه وسلم .

## په قرآن کريم کې يادې شوې ملائکې.

⇦ **په قرآن کريم کې ځينې ملائک په نامه سره ياد شوي دي .**

**جبريل "الروح الامين "**

**هاروت**

**ماروت**

**ميکال**

**مالك**

## په قرآن کريم کې د قيامت د ورځې نومونه

**په قرآن کريم کې د قيامت ورځ هم په مختلفو نومونو باندې ياده شوېده .**

الآخرة - الخافضة - الحاقّة - الرّاجفة - الرّادفة - الرّافعة - الساعة - الصاخّة - الغاشية - القارعة - المعاد - الواقعة - اليوم الآخر- يوم البعث - يوم تُبلى السرائر - يوم التغابن - يوم التّلاق - يوم التناد - يوم الجمع - يوم الحساب - يوم الحسرة - يوم الحق - يوم الخروج - يوم الخلود - يوم الدين - يوم عسير - يوم عظيم - يوم عقيم - يوم الفتح - يوم الفصل - يوم القيامة - يوم كبير - يوم محيط - يوم مشهود - يوم معلوم - يوم موعود - يوم الوعيد - يوم الجزاء - يوم النّدامة - يوم الشهادة - يوم النشور - يوم لاينفع مال ولابنون إلاّ من اتى الله بقلب سليم.

## د جنت نومونه

**په قرآن كريم كې د جنتونو صفات هم په متعددو الفاظو سره شوي دي .**

جنات عدن ـ جنات الفردوس ـ جنّات المأوى ـ جنات النعيم ـ جنّة الخلد ـ جنة عالية ـ دار السلام ـ دار القرار ـ دار المتقين ـ دار المقامة ـ روضات الجنّات ـ الدار الآخرة ـ الحسنى ـ الفضل .

## د دوزخ نومونه

**په قرآن كريم كې د دوزخ لپاره هم مختلف الفاظ كارول شوي دي .**

الهاوية ـ الشّوى ـ اللظى ـ النار ـ السموم ـ الساهرة ـ الحُطمة ـ الجحيم ـ بئس المصير ـ بئس القرار ـ بئس المهاد ـ بئس الورد المورود ـ جهنّم ـ الحافرة ـ دار البوار ـ دار الفاسقينَ ـ السّقر ـ السّعير ـ سوء الدار

## په قرآن كريم كې ياد شوي كسان

**څه كسان داسې دي چې په نوم يا د هغه په لقب سره په قرآن كريم كې ياد شوي دي .**

**فرعون .**

إمرأة نوح .

إمرأة لوط .

أبو **لهب** .

## په قرآن کریم کې یاده شوې ښځه

په قرآن کریم کې په مختلفو لقبونو سره ځینې ښځې يادې شوې دي لکه (کأم موسی (د موسی علیه السلام مور) وامرأة فرعون (د فرعون مېرمن) او په نوم سره صرف حضرت مریم علیها السلام یاده کړل شوېده او ددې په نوم باندې په قرآن کریم کې یو سورة هم دی سورة مریم .

# په قرآن کریم کې یاد شوي اندامونه

⇦ **په قرآن کريم کې ځينې انساني اعضاء هم ياد کړل شوي دي :**

الشفتان (شونډې) ، اللسان (ژبه) ، الشعر (وېښته) ، العين (سترګه) ، الأنف (پوزه) ، الأفواه (خولې) ، الأيدي (لاسونه) ، الأرجل (پښې) ، الرأس (سر) ، الكعبين (ښنګري) ، العظام (هډوکي) ، البطون (ګېډې) ، القلوب (زړونه) ، الأذقان (زنې) ، الأمعاء (کلمې) ، الجباه (تندي) ، الجنوب (څنګونه) ، البنان (ګوتې ) ، الأظافر (نوکان) ، العروق (رګونه) ،الأكباد (جيګرونه ) الحلقوم (مرۍ) ،الساق (پنډۍ) ،العضد (پله ، مسل) ،الأنامل (د ګوتو سرونه ) ، الأعناق (غاړې) ، اللحم (غوښه) ، المرافق (څنګلې) ، الأذن (غوږ) ، الأفئدة (زړونه ) ، قلوبهم (زړونه يې ) ، سمعهم (د آورېدلو قوې يې ) ، أبصارهم (سترګې يې) ، أصابعهم (ګوتې يې) ، آذانهم (غوږونه يې) ، يديها (لاسونه يې) ، قلوبنا (زمونږ زړونه) ، ظهورهم (د دوی شا ګانې) ، وجهك (ستا مخ) ، بأيديكم (ستاسې په لاسونو) ، رءوسكم (ستاسې سرونه/ ستاسې په سرونو) ، رأسه (سر يې) ،

بيده (پـه لاس سره يـې) ، الألباب (عقلونه) ، بطني (ګېډه مې) صدوركم (ستـاسې سينـې) ، ذات الصدور (د سينـو خاونـدان ) ،قلوبكم(ستـاسې زړونـه) ، أفواههم (د دوى خولـې) ، آذان (غوږونـه) ، وجهه (مخ يـې ) وروح منه (او د هغه روح ) ، الكعبين (ښنګري) ، يدك (ستـا لاس ) ، يديّ (زمـا لاسونـه ) ، أيديهم (د دوى لاسونـه ) ، أ رجلهم (پـښې يـې) ، أيديهما (لاسونـه يـې) ، قلوبهم (زړونـه يـې) ، النفس (ځـان ) ، العين (سترګـه) ، الأنف (پـوزه) ، السن (غـاښ) ، يديه (لاسونـه يـې ) ، لسان (ژبـه) ، أعينهم (سترګې يـې) ، الدمع (اوښکه ) ، وجهه (مخ يـې) ، وجهي (زمـا مخ ) ، صدره (سينـه يـې) ، أعين (سترګې) ، أيديكم وأرجلكم (ستـاسې لاسو او پـښې ) ،أرجل (پـښې) ، الأقدام (قـدمونـه ) ، جباههم (تـندي يـې) ، جنوبهم (اړخونـه يـې) ، ببدنك (ستـا پـه ځـان) ، كفيه (ورغوي يـې) ، فاه (خولـه يـې) ، بلسان قومه (د قـوم پـه ژبـه يـې ) ، للأذقان (د زنـو لـپـاره) ، ذراعيه (څنګلـې يـې) ،العظم (هډوکـى) ، بلحيتي (زمـا پـه ږيـره) ، فروجهم (فـرجونـه يـې) ،ساقيها (لـنګي يـې) ، خدك (ستـا غـامبـورى) ،جوفه (مـينـځ يـې ) ، الحناجر (غـاړې ) ، للجبين (تندى) ، الرقاب (غـاړې ) ،

أمعاءهم (کلمې يې) ، الخرطوم (پوزه) ، الوتين (شا رګ ) الصلب والترائب (شاګانې او سينې) .

## په قرآن کريم کې ياد شوي ښارونه

په قرآن کريم کې مصر هغه ښار دی چې شپږ ځله ياد کړل شوی دی او ددينه بغير نور ښارونه هم ياد شوي دي لکه بيت المقدس ، مدينه منوره ، مکه مکرمه ، بابل .

## په قرآن کريم کې يادې شوې ورځې

په قرآن کريم کې څه ورځې يادې کړل شوي دي او په نوم سره صرف دوه ورځې يادې شوې دي :

السبت (شنبه) په سورة اعراف کې .

الجمعة په سورة الجمعه کې .

نورې ورځې داسې يادې شوي دي :

يوماً ،أياماً ،أيام ، يومين ، بعض يوم ،أيام الله ،يوم عاصف ، يوم الزينة ، يوم الظلة ، يوم الأحزاب ، أيام نحسات ، يوم نحس ،يوم معلوم ، الأيام الخالية ، في يوم ذي مسغبة ،

## په قرآن کریم کې یادې شوې غزاګانې

**د رسول الله ﷺ د ژوند څه غزاګانې هم په قرآن کریم کې یادې کړل شوې دي .**

**غزوة بدر په سورة آل عمران او الانفال کې .**
**صلح حدیبیة په سورة ا لفتح کې .**
**غزوة خندق په سورة احزاب کې .**
**غزوة حنین په سورة التوبة کې.**
**غزوة تبوک په سورة التوبة کې .**
**غزوة احد په سورة آل عمران کې .**

## په قرآن کریم کې یاد شوي حیوانات

**په قرآن کریم کې ځینې حیوانات هم یاد کړل شوي دي .**

البعیر– البقر - الجوارح - الحام - الحمولة - الحیة - الخنازیر- القردَة- المعز- الناقة - الانعام - البحیرة- الدابّة - الصافنات - البغال - الجمال - الجیاد - الحمار - الفیل - القسورة - الکلب - الموریات - النعجة - الوصیلة - الابل - البُدن - الخیل - الذئب - السائبة - الضأن - العادیات - العجل - العشار - الغنم - العرم .

⇦ **په قرآن کریم کې څلور زخم کونکي حیوانات یاد کړل شوي دي ( الأسد (زمری) الکلب (سپی) الذئب (لېوه) )**

⇦ **په قرآن كريم دوه مسخ شوي حيوانات ياد كړل شوي دي ( القرد (شادو) والخنزير ).**

⇦ **په قرآن كريم كې څلور د سپرلۍ حيوانات ياد شوي دي (الخيل (آسونه) والبغال (قچرې) والحمير (خره) والفيلة (فيلان) )**

⇦ **په قرآن كريم كې ځينې بحري حيوانات هم ياد كړل شوي دي :**

الحوت ، السمك ، اللؤلؤ ، المرجان ، الياقوت ، حيتانهم

## په قرآن كريم كي ياد شوي ونې او بوټي

**په قرآن كريم كې ځينې ونې او بوټي هم ياد كړل شوي دي :**

الزيتون ، التين ، اليقطين ، البصل ، الثوم ، العدس ، العنب، الرطب ،

القثاء ، ابا ( الكلأ ) ، حبا ، الرمان ، الخوخ ، السدر ،الشجرة ، النخل ،أعناب ، الزرع ، الشجرة الملعونة ، شجرة الخلد ،شجرة مباركة ،

مثقال حبة من خردل ، خمط واثل ، شجرة الزقوم ، شجرة الرضوان { البيعة }، حب الحصيد ، النخل ، المرعى ،

## عطرونه

⇦ په قرآن كريم كې ځينې ښه بويونه (عطرونه ) هم ياد كړل شوي دي :
النرجس ، المسك ، الريحان

## په قرآ ن كريم كې ياد شوي مخلوقات

**په قرآن كريم كې ځينې جغرافيايي توكي او ظاهري موجودات هم ياد كړل شوي دي :**
الليل ، النهار ، الشتاء ، الصيف ، الحر ، الأمطار، الرياح ، السحاب ،الظلام ، الأنهار ، البحار ، الأمواج ، الصبح ، الزلازل ، الخسف ، الرعد ، البرق ، الرمال ، الحجارة ، البرد ، ظلمات ،الصواعق ، أ ظلم،البحر،الغمام ، الحجر ،النور ، تراب ،الطين ، بحيرة ،سائبة ،البر ، البحر ،سهولها ،الطوفان ، اليم ،الموج ، الجب ، رواسي ، اودية ، السيل ، الزبد ، ينبوعاً ،الساحل ، كسراب ، بحر لجي ، ركاما ، الودق ، سنا برقه ،الظل ،كسفاً ،دخان ، الآفاق ، كثيباً مهيلا ، الشفق.

⇦ **په قرآن كريم كې ځينې ستوري هم ياد كړل شوي دي :**
الشمس ، القمر ، الأرض ، الشهب ، الكواكب ، الجبال ، السماء ،النجوم ،النجم ، السموات ،كوكباً ،شهاب ، كوكب دري .

⇦ **په قرآن كريم كې څه معادن (كانونه) هم ياد شوي دي :**

الحديد, الذهــب ، الفضة، الرصاص ، القطران ، القوارير ، النحاس ، الملح ، حليهم ، اللؤلؤ ، المرجان ، الياقوت .

⇦ **په قـرآن كـريـم كې څه شپې هم يـادې کړل شوي دي :**

ليلة الصيام ، ليلة الإسراء ، ليلة القدر ، ليلة مباركة .

## كـلـمـة الــتـوحـيـد پـه قـرآن كـې

**د تـوحيد كـلـمـه نـيـمـه پـه سورة محمد آيـة ۱۹ كـې ده :**

فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ

**او نـيـمـه د سورة الـفـتح پـه آخري آيـة كـې ده :**

محمد رسول الله والذين امنو معه ....

## پــه قــرآن كـريـم كـې يــا د شـوي وخـتـونــه

**پـه قـرآن كريـم كـې ځيـنـې وخـتـونـه هم يـاد کړل شوي دي :**

والصبح إ ذا أسفر ، والفجر وليال عشر ،والضحى والليل ، السحر ، العصر ، الليل ، النهار ، الساعة ، السنة ، العام ،الدهر ، الوقت ، أياما معدودة ، الأسحار،العشي والإبكار ،وجه النهار ، آخره ،الإصباح ،ضحىً ،ساعة العسرة ، في كل عام مرة أو مرتين ، عدد السنين والحساب ، بالأمس ،ساعة من النهار ، بياتاً ، أيام ، عشاءً ، مصبحين ،دلوك الشمس ، غسق الليل ، تهجد، غداً، بالغداة والعشي

،بكرة وعشيا ، آ ناء الليل وأطراف النهار ،أدبار النجوم ، من قبل صلاة الفجر ، من الظهيرة ، ومن بعد صلاة العشاء ، بالغدو والآصال ، تمسون وتصبحون ، وعشياً وحين تظهرون ، بالعشي والإشراق ،غدواً وعشيا ، بالعشي والإبكار ، عشية أوضحاها ، الشتاء والصيف .

## نازل شوي کتابونه

**په قرآن کريم کې څو نازل شوي کتابونه هم ياد کړل شوي دي :**
الصحف الأولى ، التوراة ، الزبور ، الإنجيل ، القرآن الكريم

## په قرآن کريم کې ياد کړل شوې جامې

**په قرآن کريم کې څه جامې هم يادې کړل شوي دي :**
السندس ، الحرير ، الإستبرق ، الأساور ، اللباس ، الجلابيب، الخمار،الحلل ، كسوتهن ، لباساً ، وريشا ، لباس التقوى ، قميصه ، سرابيلهم ، حلية تلبسونها ،أصوافها وأوباها وأشعارها ، سرابيل ، ثياب من نار ، وليضربن بخمرهن على جيوبهن ، جيبك .

## په قرآن کريم کې ياد شوي مائعات

**په قرآن کريم کې څه مائعات (بهېدونکي شيان) هم ياد کړل شوي دي:**
الدم ، الماء ، الرحيق ، اللبن ، العسل ، الخمر. تسنيم ، شراب من حميم ،ماء صديد ،المهل يشوي الوجوه ،الحميم ، ماء مهين ،عين القطر ،عذب فرات سائغ شرابه وهذا ملح أجاج ،ماء معين ،مغتسل بارد وشراب ،المهل ،زيتها ، ماء غير آسن ، لبن لم يتغير طعمه ، خمر لذة للشاربين ، عسل مصفى ، مزاجها كافورا ،مزاجها زنجبيلا ، سلسبيلا ، شراباً طهورا ،ماءً فراتا ،رحيق مختوم ، عين آنية ، عين جارية ، أكواب موضوعة .

## په قرآن کريم کې ياد شوي خوراکي مواد

**په قرآن کريم کې څه خوراکي توکي هم ياد کړل شوي دي :**
الثمرات ، فواكه ، لحم طير ، ثمرة ، المن ، بقلها ، قثائها ، فومها،عدسها، بصلها ، نخيل ، أعناب ،الحب والنوى ، خبزاً ،لحماً طرياً ، غساق ، الضريع ، الزقوم ،وأمددناهم بفاكهة ولحم مما يشتهون ،غسلين .

## په قرآن کريم کې ياد شوي ځايونه

**په قرآن کريم کې څه ځايونه هم ياد شوي دي :**
المشرق ، المغرب ، البيت ،مقام إبراهيم ، بيتي ، بلداً ،قبلتهم ، القبلة ، شطر المسجد الحرام ، قبلتك ، قبلتهم ،وجهة ، الصفا ، والمروة، البيوت ،أبوابها ،عرفات ، المشعر الحرام ، ديارنا ، قرية ، الأرحام المحراب،المضاجع،القرية، بروج مشيدة ، ورائكم ،الطور ، الأرض المقدسة ، الباب ، فوقهم ، تحت ، الكعبة، نفقاً ، سلماً ،أم القرى ،وراء ظهوركم ،القرى ، الدار ، فوق ،من بين أيديهم ومن خلفهم ، إيمانهم ، شمائلهم ، مسجد ،أبواب السماء ،الأعراف ، العرش ، البلد الطيب ،قصورا ، بيوتا ، دارهم ، قريتكم،قريتنا ،المدائن ،مشارق ، مغارب ،العدوة الدنيا ، العدوة القصوى ، أسفل ، الغار ، السفلى ، العليا ، ملجأ ، مغارات ،وادياً ، السجن ، البدو ،مساكن ، بروجاً ، السقف، فوقهم، المسجد الأقصى ، الديار ، الكهف ،الوصيد ،الأرائك ،الصخرة ، بين السدين،الواد المقدس طوي ، التابوت ، صوامع ، بيع ، مساجد ، بئر معطلة ، قصر مشيد ،طور سيناء ، ربوة ،برزخ ،الأسواق ، قصورا ،المدائن ، الصرح ،مدين ،الواد الأيمن ، البقعة

المباركة ،ناديكم ،غرفاً ،المضاجع ، يثرب ،سبأ ،بلدة طيبة ، الغرفات ، بلد ميت،القبور ، من بين أيديهم ، ومن خلفهم ،السوق ، حول العرش ، البلاد ،أم القرى ،القريتين،الطور ، البيت المعمور ، السقف المرفوع ،البحر المسجور،سدرة المنتهى ،جنة المأوى،الأجداث ،البحرين .

## د كور اسباب

**په قرآن كريم كې څه د كور اسباب هم ياد شوى دى :**

الآنية- الأثاث- الأقلام- الأوتاد- الجفان- الخياط- الدِّهان- السراج- السرُر- صحاف- الفخّار- ! القدور- لقل

## په قرآن كريم كې ياد شوي حشرات

⇦ **په قرآن كريم كې ځينې حشرات هم ياد كړل شوي دي :**

**النحل (مچى)**
**النمل (مېږى)**
**الفراش .......**
**الجراد (ملخ )**
**القُمّل (سپږې)**
**الذباب (مچان)**
**البعوضة (مياسه)**
**العنكبوت (تاركشه ، غنه)**

## په قرآن كريم كې ياد شوي مارغان

⇦ **په قرآن کريم کې دوه ډوله مارغان ياد شوي دي :**
**الهدهد (ملا چرګک)**
**الغراب (کارغه)**

## په قرآن کريم کې ياد شوي رنګونه

⇦ **په قرآن کريم کې څه عددونه هم ياد کړل شوي دي :**

**اثنا عشر - أحد - اربع - الف - الفين - اثنان - احد عشر - اربعين - الف سنة الاّ خمسين - أُلوف - بضع - تسع - تسعة عشر - تسع وتسعون - ثالث - ثاني - ثلاث - ثلاثة آلاف - ثلاث مائة - ثلاثون - الثّلث - الثلثان - ثماني - الثّمن - حُقب - الخامسة - خمس - خمسة - خمسة آلاف - خمسين - خمسين الف - رابع - رُباع - الربع - سبع - سبعون - ستة - ستين - عشر - عشرون - عُصبة - مائة الف - مائتين - مثنى .**

## په قرآن کريم کې ياد شوي بتان

په قران کريم کې د څه بتانو نومونه هم راغلي دي :

ود، سواع، يغوث، يعوق، نسر دا پنځه واړه د نوح ﷺ د قوم بتان وو د حضرت ابن عباس ❼ په يو روايت کې چې دا پنځه واړه د نوح ﷺ د قوم مخه ور او نيک کسان وو کله چې هغوی مړه شول نو شيطان ددوی په زړونو کې دا خبره ور واچوله

چې دهغوی پر ځایونو باندې بتان جوړ کړئ او د همدوی نومونه وربانديې کیږدئ ترڅه وخته پورې چې د هغې زمانې خلک ژوندي وو نو دې کانو ته به یې د عزت په نظر کتل او احترام به یې ورته په زړه کې لرلو چې دا دهغه مړو کسانو نښې دي او چې کله یو څه زمانه تېره شوه دا خلک چې د حقیقت نه خبر وو دا مړه شول نو د کانو هماغه نومونه پاتې شول او نوی نسل چې راغلو هغوی دا کانې د خدایانو په حیث ومنل او عبادت یې ورته شروع کړو .

لات : دا هم د بت نوم دی په اصل کې دا هم د یو کس نوم وو .

منات ، عزا دا دری واړه د د قریشو بتان وو. جبت او طاغوت هم دواړه بتان وو الرشاد ( چې په قران کریم کې راغلی دی چې و ما اهدیک الا سبیل الرشاد د یو قول له مخې دا هم د فرعون د زمانې یو بت وو بعل د الیاس ﷺ د قوم بت وو او په یو قول کې آذر هم د یو بت نوم دی . (الا تقان فی علوم القران دوهم جلد ۱۸۱ صفحه)

# په قرآن کریم کې یادې شوې پیمانې

⇦ **په قرآن کریم کې څه پیمانې هم یادې کړل شوي دي :**

**الصاع: دا تقریبا دری کیلو وي .**

**القنطار: شپږ شرعي منه يو شرعي من ۱۸۰ مثقاله وي .**
**المثقال: يو نيم درهم وي .**
**درهم: يعادل اربع حبّات من الحمص.**
**دينار: يو شرعي مثقال .**

## جامې او رنګونه

**⇦ په قرآن کريم کې څه جامې هم يادې کړل شوي دي :**
**الاستبرق - الثياب - الحرير- السندس - القميص - الجلابيب - العبقري - کسوة .**
**⇦ په قرآن کريم کې څه رنګونه هم ياد کړل شوي دي :**
**الابيض - الاخضر - الاحوى " الاسود المائل للخضرة " - الاسود - الاصفر - مدهامتان " تور شين ".**

## قرآن کريم ته مصحف ويل کېدل

امام زرکشی په البرهان فی علوم القران کې فرمايلي دي چې قران کريم ته المصحف ويل د اول ځل لپاره هغه وخت پيل شول کله چې حضرت ابو بکر صديق ❼ قران کريم سره را ټول کړو او يوه مجموعه يې ترې جوړه کړه صحابه وو ته يې وويل چې اوس دېته يو نوم کېږدی دیته به څه وايو ؟ ځينې وويل چې انجيل به ورته ووايو نو ځينې صحابه وو بيا بده وګڼله ځکه پدې نوم يو اسماني کتاب موجود دی ، ځينې وويل چې السفر

به ورته وايو نو دا هم ځينو خوښه نه کړه حضرت عبد الله بن مسعود ❼ وويل چې ما ليدلي ووچې د حبشو يو کتاب وو هغوی به دي کتاب ته مصحف ويل نو راځئ چې مونږ هم ورته مصحف ووايو نو بيا ورته مصحف نوم خوښ کړل شو .

## پوښتني او ځوابونه

پوښتنه : هغه کوم آیة دی چې یو پېښ ، یو زور (زبر)، یو زیر، یو غړوندی، یو شد پکې راغلي وي او هېڅ شی پکې تکرار نه وي؟

ځواب: وَ الطُّوۡرِ ۙ(۱) دا آیت د سورة الطور په شروع کې دی او داسې عجیب آیت دی چې زبر، زیر، پېښ، غړوندی، شد هرشی پکې صرف یو ځل دي.

پوښتنه : په کوم سورت کې صرف یو زیر راغلی دی؟

ځواب : په سورة اخلاص کې (لم یلِد)

پوښتنه : په قرآن کریم کې په کوم ځای کې دوه ځله الله لفظ سره یو ځای راغلی دی؟

ځواب : په سورة انعام ۱۲٤ آیة کې .

الله فرمایي :

وَ اِذَا جَآءَتۡہُمۡ اٰیَۃٌ قَالُوۡا لَنۡ نُّؤۡمِنَ حَتّٰی نُؤۡتٰی مِثۡلَ مَاۤ اُوۡتِیَ رُسُلُ اللّٰہِ ؔؕ اَللّٰہُ اَعۡلَمُ حَیۡثُ یَجۡعَلُ رِسَالَتَہٗ ؕ سَیُصِیۡبُ الَّذِیۡنَ اَجۡرَمُوۡا صَغَارٌ عِنۡدَ اللّٰہِ وَ عَذَابٌ شَدِیۡدٌۢ بِمَا کَانُوۡا یَمۡکُرُوۡنَ (۱۲۴)

پوښتنه په کوم ځای کې دوه لفظونه څنګ په څنګ راغلي چې په دواړو کې صرف زورونه (زبر) استعمال شوي وي؟

ځواب : خلق خلق ټکي دي په لاندې آيتونو کې:

اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ *خَلَقَ الْإِنسَانَ مِنْ عَلَقٍ *

پوښتنه : هغه کومه کلمه ده چې صرف د قرآن کريم په دوهم نيمايي کې راغلې ده او په اولو پنځلسو پارو کې نشته ؟

ځواب : كلا داسې يوه عجيبه کلمه ده چې په قرآن کريم کې متعدد ځله ( ۳۳ ځله په ۱۵ سورتونو کې) تکرار شوېده لکن د قرآن کريم په دوهم نيمايي کې ده او په اول نيمايي کې بالکل راغلې نه ده .

پوښتنه : په قرآن کريم کې څو سورتونه د پيغمبرانو په نامه شوي دي:

ځواب : دا شپږ سورتونه دي :

سورة يونس، سورة هود، سورة يوسف، سورة إبراهيم، سورة محمد، سورة نوح (عليهم الصلوة و السلام) .

پوښتنه : هغه کوم آيت دی چې تر ټولو نه زيات تکرار شوی دی؟

ځواب : هغه فَبِاَیِّ اٰلَآءِ رَبِّکُمَا تُکَذِّبٰنِ دی چې په سورت الرحمن کې ۳۱ ځله تکرار شوی دی .

پوښتنه : هغه کوم آیت دی چې ټول الف ب حروف پکې ټول شوي دي؟

ځواب : په قرآن کریم کې د سورت آل عمران ۱۵٤ آیة دی هلته الله فرمایي :

ثُمَّ أَنزَلَ عَلَيْكُم مِّن بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُّعَاساً يَغْشَى طَآئِفَةً مِّنكُمْ وَطَآئِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنفُسُهُمْ يَظُنُّونَ بِاللّهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ يَقُولُونَ هَل لَّنَا مِنَ الأَمْرِ مِن شَيْءٍ قُلْ إِنَّ الأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ يُخْفُونَ فِي أَنفُسِهِم مَّا لاَ يُبْدُونَ لَكَ يَقُولُونَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هَاهُنَا قُل لَّوْ كُنتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ إِلَى مَضَاجِعِهِمْ وَلِيَبْتَلِيَ اللّهُ مَا فِي صُدُورِكُمْ وَلِيُمَحَّصَ مَا فِي قُلُوبِكُمْ وَاللّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ .

او د سورة فتح وروستنی آیت دی چې ټول الف ب حروف پکې جمع شوي دي هلته الله ﷻ فرمایي :

سورة الفتح آیة ۲۹

مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ؕ وَ الَّذِیْنَ مَعَهٗۤ اَشِدَّآءُ عَلَی الْکُفَّارِ رُحَمَآءُ بَیْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُکَّعًا سُجَّدًا یَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَ رِضْوَانًا ۫ سِیْمَاهُمْ فِیْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ؕ ذٰلِکَ مَثَلُهُمْ فِی التَّوْرٰىةِ ۚۛ وَ مَثَلُهُمْ فِی الْاِنْجِیْلِ ۚ۟ۛ کَزَرْعٍ اَخْرَجَ شَطْـَٔهٗ

فَاٰزَرَهٗ فَاسۡتَغۡلَظَ فَاسۡتَوٰى عَلٰى سُوۡقِهٖ يُعۡجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيۡظَ بِهِمُ الۡكُفَّارَ ؕ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ مِنۡهُمۡ مَّغۡفِرَةً وَّ اَجۡرًا عَظِيۡمًا (٢٩)

پوښتنه : په قرآن کريم کې تر ټولو نه اوږده کلمه کومه يوه ده؟

ځواب : په قرآن کريم کې تر ټولو نه اوږده کلمه په سورة حجر آية ٢٢ کې **فَأَسْقَيْنَاكُمُوهُ** ده چې يولس حرفونه لري هلته الله ﷻ فرمايي :

وَأَرْسَلْنَا الرِّيَاحَ لَوَاقِحَ فَأَنْزَلْنَا مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَسْقَيْنَاكُمُوهُ وَمَا أَنْتُمْ لَهُ بِخَازِنِينَ

او بله په سورة هود ٢٨ آية کې (اَنُلۡزِمُكُمُوۡهَا) ده چې لس حرفونه لري هلته الله ﷻ فرمايي :
سورة هود آية ٢٨

قَالَ يٰقَوۡمِ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ كُنۡتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنۡ رَّبِّىۡ وَ اٰتٰنِىۡ رَحۡمَةً مِّنۡ عِنۡدِهٖ فَعُمِّيَتۡ عَلَيۡكُمۡ ؕ اَنُلۡزِمُكُمُوۡهَا وَ اَنۡتُمۡ لَهَا كٰرِهُوۡنَ (٢٨)

پوښتنه : هغه کوم سورت دی چې په هر آية کې يې د الله لفظ راغلی دی ؟

ځواب : سورة مجادله هغه سورت دی چې د ٢٨ پارې شروع وربانديې شوې ده پدې سورت کې الله ﷻ په اسم او ضمير سره ٥٨ ځله ياد کړل شوی دی

او دا یوازینی هغه سورت دی چې په هر آیت کې یې لږ تر لږه یو ځل الله لفظ راغلی دی او پدې کې ډېره عجیبه خبره دا هم ده چې دا سورت د قرآن کریم په ترتیب کې هم آته پنځوسم دی او ۵۸ ځله پکې الله ﷺ هم یاد کړل شوی دی (په اسم او ضمیر دواړو سره).

پوښتنه: په قرآن کریم کې کوم صحابه په نوم سره یاد شوي دي؟

ځواب: په قرآن کریم کې یوازې د یو صحابي نوم یاد کړل شوی دی حضرت زید بن حارثه ❼ .

سورة الاحزاب آیة ۳۷

فَلَمَّا قَضَی زَیْدٌ مِنْهَا وَطَرًا زَوَّجْنَاكَهَا

پوښتنه: هغه کوم سورت دی چې د دوو پیغمبرانو په نومونو سره ختم شوی دی؟

ځواب: هغه سورة چې د دوو پیغمبرانو په نوم باندې ختم دی سورة الاعلی دی آخر آیت یې په لاندې ډول دی:

سورة الاعلی آیة ۱۹

صُحُفِ اِبْرٰهِیْمَ وَ مُوْسٰی (۱۹)

پوښتنه: هغه کوم سورة دی چې د دوو مېوو په نومونو سره شروع شوی دی؟

ځواب: په قرآن کریم کې سورة التین هغه سورت دی چې د دوو میوو په نومونو سره شروع

شوی دی (وَ التِّيۡنِ وَ الزَّيۡتُوۡنِ) (قسم د وي په انځر او زيتون)

پوښتنه : هغه کوم آيت دی چې تر ټولو نه زيات انبياء عليهم السلام پکې ياد کړل شوي دي؟

ځواب : هغه د سورة النساء ١٦٣ آية دی هلته په يوه آيت کې لس پيغمبران (عليهم السلام) جمع شوي دي الله تعالى فرمايي :

اِنَّاۤ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلَيۡکَ کَمَاۤ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلٰی نُوۡحٍ وَّ النَّبِيّٖنَ مِنۡۢ بَعۡدِهٖ ۚ وَ اَوۡحَيۡنَاۤ اِلٰۤی اِبۡرٰهِيۡمَ وَ اِسۡمٰعِيۡلَ وَ اِسۡحٰقَ وَ يَعۡقُوۡبَ وَ الۡاَسۡبَاطِ وَ عِيۡسٰی وَ اَيُّوۡبَ وَ يُوۡنُسَ وَ هٰرُوۡنَ وَ سُلَيۡمٰنَ ۚ وَ اٰتَيۡنَا دَاوٗدَ زَبُوۡرًا ﴿۱۶۳﴾

پوښتنه : هغه کوم سورت دی چې آيتونه يې تر سلو زيات دي لکن بيا هم په ټول سورت کې نه د جنت او نه د دوزخ خبره شويده؟

ځواب : دا سورت يوسف دی په دولسمه پاره کې شروع شوی دی او ١٠٩ آيتونه لري .

پوښتنه : تر ټولو نه اوږد آيت په قرآن کريم کې کوم يو دی؟

ځواب : په قرآن کريم کې تر ټولو نه اوږد آيت د سورة بقرې ٢٨٢ آية دی.

پوښتنه : په قرآن کريم کې د مرتبې په لحاظ تر ټولو نه لوی آيت کوم يو دی؟

ځواب : آیة الکرسي

پوښتنه : تر ټولو نه لنډ آیت په قرآن کریم کې کوم یو دی؟

ځواب : په قرآن کریم کې تر ټولو نه لنډ آیت یس دی د سورة یس په شروع کې .

پوښتنه : هغه څه شی دي چې په قرآن کریم کې ورته ویل شوي وي چې هغه تنفس کوي لکن هغه شی ژوندي نه وي؟

ځواب : هغه سَحر دی په قرآن کریم کې الله فرمایي :

سورة التکویر آیة ۱۸

وَ الصُّبۡحِ اِذَا تَنَفَّسَ (ۙ۱۸)

ترجمه : او زما د قسم وي په سحر چې کله تنفس وکوي

پوښتنه : هغه کوم ژوندي شیان دي چې د مور له ګېډې څخه نه دي راوتلي؟

ځواب : دا څلور شیان دي:

آدم

حضرت حواء علیها السلام

د صالح ا وښه (له کاڼي څخه را پیدا شوې وه)

د اسمعیل په ځای ذبح کړل شوی وری (ګډوری) د جنت څخه راوړل شوی وو.

پوښتنه : هغه کوم ځای دی چې صرف یو ځل لمر وربانديې لګېدلی دی؟

ځواب : هغه تر بحر لاندې هغه ځای دی چې کله حضرت موسی ؑ ته بحر په خپله ګېډه کې لاره ورکړې وه او چې کله حضرت موسی ؑ او قوم یې تردې بحر نه تېر شول نو بیا هغه بېرته سره ورغلو بیا تر اوسه پورې نه دی سره بېل شوی الله ﷻ پدې اړه فرمايي :

فَاَوۡحَيۡنَاۤ اِلٰى مُوۡسٰٓى اَنِ اضۡرِبْ بِّعَصَاكَ الۡبَحۡرَ‌ ؕ فَانْفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرۡقٍ كَالطَّوۡدِ الۡعَظِيۡمِ‌ (۶۳)

ترجمه : هغه وخت مونږ موسی ته وحي ولېږل چې په خپله همسا باندې بحر ووهه (چې هغه ووهلو) نو بحر سره ټوټه شو داسې ښکاریدو لکه دا چې لوی غر وي.

پوښتنه : هغه کوم پیغمبران وو چې تر پیدا کېدو وړاندې نومونه وربانديې کېښودل شوي وو؟

ځواب : هغه پنځه کسان وو؟

۱. سیدنا محمد ﷺ
۲. یحیی ؑ
۳. عیسی ؑ
۴. اسحاق ؑ
۵. ویعقوب ؑ

پوښتنه : په ټولو پیغمبرانو کې کوم پیغمبر په قرآن کریم کې ډېر ځله ذکر شوی دی ؟ او څو ځله یاد کړل شوی دی؟

ځواب : دا حضرت موسی ؑ دی او 136 ځله یاد کړل شوی دی .

پوښتنه : په قرآن کریم کې کوم داسې یو آیت دی چې په ض حرف سره ختم شوی دی؟

ځواب : دا آیت د سورة فصلت ٥١ آیت دی هلته الله ﷻ فرمایي :

وَ اِذَاۤ اَنۡعَمۡنَا عَلَى الۡاِنۡسَانِ اَعۡرَضَ وَ نَاٰ بِجَانِبِهٖ ۚ وَ اِذَا مَسَّهُ الشَّرُّ فَذُوۡ دُعَآءٍ عَرِيۡضٍ (٥١)

پوښتنه : په قرآن کریم کې دوه کافونه په یوځای راغلي په کوم ځای کې دي؟

ځواب : په سورة بقرة ٢٠٠ آیة کې هلته الله ﷻ فرمایي :

فَإِذَا قَضَيْتُم مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُواْ اللّهَ كَذِكْرِكُمْ آبَاءكُمْ

په سورة فاطر کې ١٤ آیة هلته الله ﷻ فرمایي :

وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ

په سورة مدثر کې ٤٢ آیة دی هلته الله ﷻ فرمایي :

مَا سَلَكَكُمْ فِي سَقَرَ

په سورة النساء کې ۷۸ آیة دی هلته الله ☐ فرمایي :

أَيْنَمَا تَكُونُواْ يُدْرِككُّمُ الْمَوْتُ...

پوښتنه : په قرآن کریم کې د ح تکي نه وروسته متصله بله ح راغلې ده په کوم ځای کې ده؟

ځواب : په سورة بقرة آیة ۲۳۵ کې الله ☐ فرمایي :

وَلاَ تَعْزِمُواْ عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىَ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ

په سورة کهف آیة ٦٠ کې الله ☐ فرمایي :

لَا أَبْرَحُ حَتَّى أَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ

پوښتنه : په قرآن کریم کې یو آیت دی ۲۳ ځله د (ک) حرف پکې تکرار شوی دی کوم یو دی؟

ځواب : دا په قرآن کریم کې تر ټولو نه اوږد آیة دی په سورة بقرة کې ۲۸۲ آیة دی هلته الله ☐ فرمایي :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِذَا تَدَايَنتُم بِدَيْنٍ إِلَى أَجَلٍ مُّسَمًّى فَاكْتُبُوهُ وَلْيَكْتُب بَّيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ وَلاَ يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللّهُ فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللّهَ رَبَّهُ وَلاَ يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئاً فَإن كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهاً أَوْ ضَعِيفاً

أَوْ لاَ يَسْتَطِيعُ أَن يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ وَاسْتَشْهِدُواْ شَهِيدَيْنِ من رِّجَالِكُمْ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاء أَن تَضِلَّ إْحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الأُخْرَى وَلاَ يَأْبَ الشُّهَدَاء إِذَا مَا دُعُواْ وَلاَ تَسْأَمُوْاْ أَن تَكْتُبُوْهُ صَغِيراً أَو كَبِيراً إِلَى أَجَلِهِ ذَلِكُمْ أَقْسَطُ عِندَ اللّهِ وَأَقْومُ لِلشَّهَادَةِ وَأَدْنَى أَلاَّ تَرْتَابُواْ إِلاَّ أَن تَكُونَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَلاَّ تَكْتُبُوهَا وَأَشْهِدُوْاْ إِذَا تَبَايَعْتُمْ وَلاَ يُضَآرَّ كَاتِبٌ وَلاَ شَهِيدٌ وَإِن تَفْعَلُواْ فَإِنَّهُ فُسُوقٌ بِكُمْ وَاتَّقُواْ اللّهَ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّهُ وَاللّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ

پوښتنه : **محمد** لفظ په قرآن کريم کې څو ځله تکرار شوى دى؟

ځواب : څلور ځله

پوښتنه : دوه سورتونه دي يو يې په يو لفظ شروع شوى دى بل په هماغه لفظ ختم شوى دى دا کوم دي؟ (سره متصل نه دي)

ځواب : دا سورتونه په آخري پاره کې دي يو يې سورة **الفجر** دى په والفجر تکي سره شروع شوى

دی او بل یې سورة القدر دی هغه په **الفجر** ټکي سره ختم شوی دی .

پوښتنه : هغه کوم ښځه او خاوند دي چې خاوند يې کافر او ښځه يې مسلمانه وي په قرآن کريم کې ياد شوي دي؟

ځواب : فرعون او ښځه يې

پوښتنه : هغه کوم ښځه او خاوند دي چې خاوند يې مسلمان او ښځه يې کافره وي په قرآن کريم کې ياد شوي دي؟

ځواب : حضرت لوط ؑ او مېرمن يې .

پوښتنه :هغه کوم سورت دی چې دا ټکي پکې بالکل نشته : ج، خ، د، ذ، ز، س، ض، ظ، غ،م

ځواب : دا سورة کوثر دی په آخره پاره کې ا لله فرمايي :

اِنَّآ اَعۡطَيۡنٰکَ الۡكَوۡثَرَ ؕ(۱)
فَصَلِّ لِرَبِّکَ وَ انۡحَرۡ ؕ(۲)
اِنَّ شَانِئَکَ ہُوَ الۡاَبۡتَرُ ٪(۳)

پوښتنه : هغه کومې دوه کلمې دي چې په يوه آيت کې سره سريښ دوه ځله راغلې وي؟

ځواب : داسې کلمې په متعددو ځايونو کې دي په لاندې ډول:

فيه فيه ( التوبة - 108 )

احسنتم احسنتم ( الاسراء - 7 )

هيهات هيهات ( المؤمنون - 36 )

بطشتم بطشتم – ( الشعراء - 130 )

السابقون السابقون (الواقعة - 10 )

سلاماً سلاماً ( الواقعة - 26 )

دكاً دكاً ( الفجر - 21 )

صفا صفا ( الفجر - 22 ).

پوښتنه : يو آيت دى دوه ځله پکې اصحب الجنة (جنتيان) ياد كړل شوي كوم يو دى؟

ځواب : دا په سورة حشر کې ٢٠ آيت دى هلته الله ﷻ فرمايي :

لَا يَسْتَوِىٓ اَصْحٰبُ النَّارِ وَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ؕ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ہُمُ الْفَآئِزُوْنَ (٢٠)

پوښتنه : يو آيت دى په هغه کې لس خبرې دي هره خبره يې له مخکې نه بدله ده دا کوم آيت دى؟

ځواب : دا د سورة الشورى ١٥ آية دى په ٢٥ پاره کې دى هلته الله ﷻ فرمايي :

فَلِذٰلِکَ فَادۡعُ ۚ وَ اسۡتَقِمۡ کَمَاۤ اُمِرۡتَ ۚ وَ لَا تَتَّبِعۡ اَہۡوَآءَہُمۡ ۚ وَ قُلۡ
اٰمَنۡتُ بِمَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰہُ مِنۡ کِتٰبٍ ۚ وَ اُمِرۡتُ لِاَعۡدِلَ بَیۡنَکُمۡ ؕ اَللّٰہُ
رَبُّنَا وَ رَبُّکُمۡ ؕ لَنَاۤ اَعۡمَالُنَا وَ لَکُمۡ اَعۡمَالُکُمۡ ؕ لَا حُجَّۃَ بَیۡنَنَا وَ
بَیۡنَکُمۡ ؕ اَللّٰہُ یَجۡمَعُ بَیۡنَنَا ۚ وَ اِلَیۡہِ الۡمَصِیۡرُ ﴿ؕ۱۵﴾

ترجمه :۱. (ای محمده) د همدې دین لوري ته خلک را غواړه ۲. په کوم شي چې درته حکم شوی دی په هماغه باندې ټینګ اوسه ۳. د دوی د خواهشاتو متابعت مه کوه ٤. او ووایه چې کوم کتاب الله نازل کړی دی زما په هماغه باندې ایمان دی ٥. او ووایه چې ماته حکم شوی دی چې ستاسې په مینځ کې انصاف وکوم ٦. او ووایه چې الله زما او ستاسې رب دی ۷. مونږ ته به زمونږ د عملونو بدل راکول کیږي او تاسې ته ستاسې ۸. د مونږ په مینځ کې بحث او لانجه نشته ۹. الله به مونږ ټول سره ټولوي ۱۰. او د الله لوري ته رجوع او ور ګرځېدل دي.

دا ډېر عجیب آیت دی همدارنګه په آیة کرسي کې هم لس خبرې دي خو هغه بیا هم یو بل ته سره نېږدې موضوع ګانې دي لکه په څو خبرو کې چې د الله لویي بیان شویده او دهغه صفت شوی دی.

پوښتنه : هغه کوم ځای دی چې الله رسول ♈ ته حکم کړی دی چې هغه د قسم وخوري ؟

ځواب : الله ﷻ په دريو ځايونو کې رسول الله ﷺ ته حکم کړی دی چې هغه د قسم وخوري په لاندې ډول :

۱. سورة يونس آية ٥٣

وَ يَسۡتَنۡۢبِئُوۡنَکَ اَحَقٌّ ہُوَ ؕ قُلۡ اِیۡ وَ رَبِّیۡۤ اِنَّہٗ لَحَقٌّ ۚ ؕ وَ مَاۤ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِیۡنَ (٥٣)

ترجمه : او دوی لتا څخه پوښتنه کوي چې آيا دا رښتيا دي؟ ته ورته ووايه هو زما د په خپل رب قسم وي دا رښتيا دي. او تاسې الله ﷻ نشي عاجز کولئ.

۲. سورة سبا آية ٣

وَ قَالَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡا لَا تَاۡتِیۡنَا السَّاعَۃُ ؕ قُلۡ بَلٰی وَ رَبِّیۡ لَتَاۡتِیَنَّکُمۡ

ترجمه : کافران وايي په مونږ باندې به قيامت نه راځي ته ورته ووايه ولې نه راځي زما د قسم په رب وي چې درباندې راځي.

۳. سورة التغابن آية ٧

زَعَمَ الَّذِیۡنَ کَفَرُوۡۤا اَنۡ لَّنۡ یُّبۡعَثُوۡا ؕ قُلۡ بَلٰی وَ رَبِّیۡ لَتُبۡعَثُنَّ

ترجمه : هغه کسان چې کافران دي ګمان کوي چې دوی به نه را پاڅول کيږي ته ورته ووايه ولې به نه را پاڅول کېږئ زما د قسم په خپل رب وي تاسې به را پاڅول کيږئ .

پوښتنه : په یوه سورت کې اوه آیتونه یو په بل پسې دي د هر آیت په آخر کې د الله ﷻ دوه نومونه راغلي دي دا په کوم سورت کې دي؟

ځواب : دا په سورت حج کې د آیة ۵۹ څخه تر ۶۵ پورې دا آیتونه په لاندې ډول دي :

لَيُدْخِلَنَّهُمْ مُّدْخَلًا يَّرْضَوْنَهٗ ؕ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَعَلِيْمٌ حَلِيْمٌ (۵۹)
ذٰلِكَ ۚ وَ مَنْ عَاقَبَ بِمِثْلِ مَا عُوْقِبَ بِهٖ ثُمَّ بُغِیَ عَلَيْهِ لَيَنْصُرَنَّهُ اللّٰهُ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَعَفُوٌّ غَفُوْرٌ (۶۰)

ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ يُوْلِجُ الَّيْلَ فِی النَّهَارِ وَ يُوْلِجُ النَّهَارَ فِی الَّيْلِ وَ اَنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌۢ بَصِيْرٌ (۶۱)
ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْحَقُّ وَ اَنَّ مَا يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖ هُوَ الْبَاطِلُ وَ اَنَّ اللّٰهَ هُوَ الْعَلِیُّ الْكَبِيْرُ (۶۲)
اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۫ فَتُصْبِحُ الْاَرْضُ مُخْضَرَّةً ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَطِيْفٌ خَبِيْرٌ (۶۳)
لَهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الْاَرْضِ ؕ وَ اِنَّ اللّٰهَ لَهُوَ الْغَنِیُّ الْحَمِيْدُ (۶۴٪)
اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ سَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِی الْاَرْضِ وَ الْفُلْكَ تَجْرِیْ فِی الْبَحْرِ بِاَمْرِهٖ ؕ وَ يُمْسِكُ السَّمَآءَ اَنْ تَقَعَ عَلَی الْاَرْضِ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوْفٌ رَّحِيْمٌ (۶۵)

پوښتنه : هغه کوم آیتونه دي چې صرف یوه کلمه وي (د حروف مقطعات چې د سورتونو په سر کې راځي ددېنه بغیر)
ځواب : هغه آیتونه چې صرف یوه کلمه وي په لاندې ډول دي:

مدهامتان – الرحمن – الحاقة – القارعة

پوښتنه : په قرآن کریم کې درې سورتونه متصل راغلي د هر یو آیتونه تر ۵۰ زیات دي او په یوه کې هم د الله لفظ نه دی راغلی دا کوم سورتونه دي ؟

ځواب : دا سورتونه په ۲۷ پاره کې دي القمر – ، الرحمن – او الواقعة

پوښتنه : هغه کوم آیت دی چې تر ټولو نه زیات میمونه ( م ) پکې راغلی وي؟
ځواب : دا آیة په سورة هود کې ۴۸ آیة دی او ۱٦ ځله پکې (م) ټکی راغلی دی هلته الله فرمایي :

قِيْلَ يٰنُوْحُ اهْبِطْ بِسَلٰمٍ مِّنَّا وَ بَرَكٰتٍ عَلَيْكَ وَ عَلٰى اُمَمٍ مِّمَّنْ مَّعَكَ ؕ وَ اُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ يَمَسُّهُمْ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ (۴۸)

او دا عجيبه ده چې په أُمَمٍ مِّمَّنْ مَّعَکَ کې اوه ميمه په يو ځای راغلي دي.

پوښتنه : په قرآن کريم کې د مسلمانانو لپاره تر ټولو نه زيات د خوشحالی آية کوم يو دی؟

ځواب : دا آية په سورة الزمر کې ۵۳ آية دی پدې آية کې الله ﷻ فرمايي :

قُلْ يٰعِبَادِیَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰى اَنْفُسِہِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَۃِ اللّٰہِ ؕ اِنَّ اللّٰہَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ؕ اِنَّہٗ ہُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِيْمُ (۵۳)

ترجمه : ووايه (زما بندګانو ته ) ای زما هغه بندګانو چې تاسې په خپلو ځانونو باندې ظلم کړی دی د الله ﷻ د رحم څخه مه نا اميده کېږئ الله ﷻ ټول ګناهونه بښي بېشکه هغه بښونکی او مهربان دی.

پوښتنه : په قرآن کريم کې يو سورت دی چې نوم يې د کوم حرف نه شروع کيږي هغه حرف په ټول سورت کې نه دی راغلی دا کوم سورت دی؟

ځواب : دا سورة فاتحه دی په ټول سورة کې (ف) ټکی نه دی راغلی .

پوښتنه : هغه کوم سورتونه دي چې د الله ﷻ په نومونو باندې يادېږي ؟

ځواب : هغه دوه سورتونه دي ١. النور ٢. الرحمن

پوښتنه : هغه کوم آيت دی چې په ټول آية کې نقطه (د ټکي لرونکی حرف) نشته (بغير د مقطعاتو حروفو څخه)

ځواب : دا دوه سورتونه دي ١. و الطور ٢. والعصر

پوښتنه : مشرکينو رسول الله ﷺ ته وويل چې مونږ هرڅوک د هغه په نسب پېژنو ته مونږ ته د خپل رب نسب ووايه چې مونږ يې وپېژنو نو د دوی ددې ځواب لپاره يو سورة نازل شو هغه کوم يو دی؟ کوم سورة د دوی د دې خبرې ځواب کېدلی شي ؟

ځواب : سورة اخلاص په هغه کې ويل شوي دي چې الله ﷻ نه له چا څخه پيدا شوی دی او نه له ده څخه څوک پيدا شوي دي .

پوښتنه : هغه کوم سورة دی چې آته آيتونه يکې په ثم (بيا) سره شروع شوي وي؟

ځواب : دا سورة المؤمنون دی او آيتونه يې په لاندې ډول دي :

}ثُمَّ جَعَلْنَاهُ نُطْفَةً فِي قَرَارٍ مَكِينٍ [المؤمنون : 13]

}ثُمَّ خَلَقْنَا النُّطْفَةَ عَلَقَةً فَخَلَقْنَا الْعَلَقَةَ مُضْغَةً فَخَلَقْنَا الْمُضْغَةَ
عِظَامًا فَكَسَوْنَا الْعِظَامَ لَحْمًا ثُمَّ أَنْشَأْنَاهُ خَلْقًا آخَرَ فَتَبَارَكَ اللَّهُ
أَحْسَنُ الْخَالِقِينَ المؤمنون ١٤ : 1}ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ
ذَلِكَ لَمَيِّتُونَ [المؤمنون : 15
}ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ [المؤمنون : 16]
}ثُمَّ أَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قَرْنًا آخَرِينَ [المؤمنون : 31
}ثُمَّ أَنْشَأْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ قُرُونًا آخَرِينَ [المؤمنون : 42
}ثُمَّ أَرْسَلْنَا رُسُلَنَا تَتْرَى كُلَّ مَا جَاءَ أُمَّةً رَسُولُهَا كَذَّبُوهُ فَأَتْبَعْنَا
بَعْضَهُمْ بَعْضًا وَجَعَلْنَاهُمْ أَحَادِيثَ فَبُعْدًا لِقَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ
[المؤمنون : 44
}ثُمَّ أَرْسَلْنَا مُوسَى وَأَخَاهُ هَارُونَ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُبِينٍ
[المؤمنون : 45

پوښتنه : هغه کوم دوه سورتونه دي چې يو په بل پسې راغلي دي او د دوارو د آيتونو تعداد په يو ډول دی؟

ځواب : سورة الطلاق او سورة ا لتحريم هغه دوه عجيب سورتونه دي چې څنګ په څنګ سره راغلي دي او دواړه بالکل يو ډول دي او دواړه ١٢ آيتونه

لري او په قرآن کريم کې بل داسې سورت نشته چې ۱۲ آيتونه ولري همدارنګه په دېرشمه پاره کې سورة العاديات او القارعة هم څنګ په څنګ راغلي دي او دواړه ۱۱ آيتونه لري .

پوښتنه : الله لفظ په قرآن کريم کې څو ځله راغلی دی؟

ځواب : الله لفظ په قرآن کريم کې ټول ۲۷۰۷ ځله ياد کړل شوی دی پدې کې ۹۸۰ په حالت رفع کې دی (پېښ دی ورباندې) ۵۹۲ ځله په حالت نصب کې دی (زبر دی ورباندې) او ۱۱۳۵ ځله په حالت جر کې دی (زېر دی ورباندې)

پوښتنه : هغه کوم آيت دی چې په کعبه کې د ننه نازل شوی دی؟

ځواب : هغه د سورة النساء ۵۸ آية دی الله فرمايي :

إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تُؤَدُّوا الْأَمَانَاتِ إِلَى أَهْلِهَا

پوښتنه : دوې غونډۍ دي په قرآن کريم کې په يو ځای يادې کړل شوي دي په کوم آية او سورة کې دي؟

ځواب : د صفا او مروع غونډۍ دي په سورة بقرة کې ياد کړل شوي دي :

سورة البقرة آية ۱۵۸

اِنَّ الصَّفَا وَ الۡمَرۡوَةَ مِنۡ شَعَآئِرِ اللّٰهِ

پوښتنه : دوه سورتونه دي د مانځه د وخت په نومونو باندې یادیږي هغه کوم دي؟

ځواب : دوارړه په دیرشمه پاره کې دي سورة الفجر او سورة العصر.

پوښتنه : هغه کوم سورة دی چې په تسبیح سره شروع شوی دی او په تسبیح سره ختم شوی دی؟

ځواب : هغه سورة حشر دی اول آیة یې دادی :

سَبَّحَ لِلّٰہِ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ مَا فِی الۡاَرۡضِ ۚ وَ ہُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ (۱)

او آخر آیة یې دادی

ہُوَ اللّٰہُ الۡخَالِقُ الۡبَارِئُ الۡمُصَوِّرُ لَہُ الۡاَسۡمَآءُ الۡحُسۡنٰی ؕ یُسَبِّحُ لَہٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَ الۡاَرۡضِ ۚ وَ ہُوَ الۡعَزِیۡزُ الۡحَکِیۡمُ (۲۴٪)

پوښتنه : د لمړي ځل لپاره کومه شماره په قرآن کریم کې یاده شویده؟

ځواب : څلویښت اول یاد شوي دي په سورة بقرة کې په ۵۱ آیة کې الله تعالی فرمایي :

وَ اِذۡ وٰعَدۡنَا مُوۡسٰۤی اَرۡبَعِیۡنَ لَیۡلَۃً

پوښتنه : حضرت جبریل علیه السلام په قرآن کریم کې څو ځله یاد شوی دی؟

ځواب : دری ځله دوه ځله په سورة البقرة کې په آیة ۹۷ کې :

قُلۡ مَنۡ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبۡرِيۡلَ فَاِنَّہٗ نَزَّلَہٗ عَلٰى قَلۡبِكَ

او په آية ۹۸ کې مَنۡ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَ مَلٰٓئِكَتِهٖ وَ رُسُلِهٖ وَ جِبۡرِيۡلَ وَ مِيۡكٰىلَ فَاِنَّ اللّٰہَ عَدُوٌّ لِّلۡكٰفِرِيۡنَ (۹۸)

او په سورة التحريم آية ٤ کې.

فَاِنَّ اللّٰہَ ہُوَ مَوۡلٰىہُ وَ جِبۡرِيۡلُ وَ صَالِحُ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ

پوښتنه : په قرآن کريم کې يهود ډېر ياد شوي که نصارى؟

ځواب : نصارى په قرآن کريم کې ١٤ ځله او يهود ٨ ځله ياد شوي دي.

پوښتنه : هغه کوم آيت دى چې دا ښکاره کوي څوک د رسول الله متابعت وکوي الله ورسره مينه کوي؟

ځواب : دا د سورة آل عمران ٣١ آية دى هلته الله فرمايي :

قُلۡ اِنۡ كُنۡتُمۡ تُحِبُّوۡنَ اللّٰہَ فَاتَّبِعُوۡنِىۡ يُحۡبِبۡكُمُ اللّٰہُ وَ يَغۡفِرۡ لَكُمۡ ذُنُوۡبَكُمۡ ؕ وَ اللّٰہُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ (۳۱)

ترجمه : ورته ووايه (اى محمده) که چېرته تاسې الله خوښوئ نو زما متابعت وکوئ الله به لتاسې سره محبت وکوي او تاسې ته به ستاسې ګناهونه و بښي او الله بښونکى او مهربان دى.



**قرآن کریم** دالله اسماني او قديم کتاب دی ، د رسول الله ﷺ معجزه ده الله یې په مختلفو الفاظو کې مدح او صفتونه کړي دي لکه چې الله فرمايي :

حکمة : يس (١) وَالْقرآن الْحَكِيمِ (٢)

کرم : انَّهُ لَقرآن كَرِيمٌ (سورة الواقعة آية ٧٧)

عزت : وَإِنَّهُ لَكِتَابٌ عَزِيزٌ (سورة فصلت آية ٤١ )

عظمت : وَلَقَدْ آتَيْنَاكَ سَبْعاً مِّنَ الْمَثَانِي وَالْقرآن الْعَظِيمَ ( سورة الحجر آية ٨٧) برکت : كِتَابٌ أَنزَلْنَاهُ الَيْكَ مُبَارَكٌ

او داسې نور یې الله په مختلفو قسمونو او الفاظو باندې صفتونه کړي دي همدارنګه په احاديثو کې چې د **قرآن کریم** کوم صفتونه راغلي دي هغه ډېر زيات دي.

لکه چې فرمايي : په تاسې کې ښه هغه څوك دي چې قرآن یې زده وي او خلکو ته یې ورزده کوي . (رواه البخاري)

د **قرآن کریم** د تلاوت لپاره یو څه ادبونه دي چې ستاسې فام ورته را اړوم :

## نیت صفا کول

تلاوت کونکی چې کله هم تلاوت کوي باید نیت یې صرف د الله رضا او دهغه دحکم منل وي چې مونږ ته یې امر کړی دی چې تلاوت کوئ او الله فرمایي چې انسانانو ته صرف دا امر شوی دی چې دوی به د الله عبادت په اخلاص سره کوي لکه چې فرمایي:

سورة البينة آية ٥

وَمَا أُمِرُوا الَّا لِيَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ.

حضرت بریده فرمایي : رسول الله فرمایل : چا چې قرآن ددې لپاره ولوست چې پدې سره یې له خلکو څخه خوراك کولو د قیامت په ورځ به په داسې حالت کې راشي چې مخ به یې ټول هډوکی وي او غوښه به نه وي پرې .

رواه البيهقي

## تلاوت کونکی به پاك وي

کله چې تلاوت کونکی تلاوت کوي باید د هرقسم وړې او لویې بې اودسۍ څخه پاك وي ، او که زنانه وي باید دحیض او نفاس څخه هم پاکه وي او د قرآن کریم سره به څوك بې اوداسه لاس هم نه لګوي لکه چې الله ﷻ فرمایي :

سورة الواقعة آية ٨٠

انَّهُ لَقرآن كَرِيمٌ (٧٧) فِي كِتَابٍ مَّكْنُونٍ (٧٨) لَّا يَمَسُّهُ الَّا الْمُطَهَّرُونَ (٧٩) تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ الْعَالَمِينَ.

ترجمه : بېشکه دا کتاب ( لوستل شوی په تا باندې) قرآن دی عزت واله ، (چې لیکل شوی دی ) په کتاب پټ ساتل شوی په ( لوح محفوظ کې) نه یې دې مسه کوي څوك مګر هغه چې پاك وي ، او دا نازل کړل شوی دی له طرفه د الله .

حضرت علی ❼ فرمایي : ما رسول الله ﷺ ولیدو چې اودس یې وکولو او بیا یې د قرام کریم یوڅه آیتونه تلاوت کړل او بیا یې وویل : دا سې به کوي هغه څوك چې جنب نه وي او جنب به بالکل تلاوت نه کوي اګر که یو آیت هم وي .

## دخولې پاکول

تلاوت کونکی به کوشش کوي چې د تلاوت څخه وړاندې خوله په مسواك باندې پاکه کړي ځکه چې په همدې باندې د الله د پاك کلام تلاوت کیږي حضرت

قتاده 7 فرمايي : له كوم وخت نه چې قرآن وايم ما اوږه نده خوړلې .

حضرت على 7 فرمايي : رسو الله ﷺ فرمايي : ستاسې خولې د قرآن كريم لارې دي په مسواك سره يې پاكې كړئ . (رواه البزار)

## مخامخ قبلې ته كېناستل

تلاوت كونكى بايد قبلې ته مخامخ كيني ترڅو چې دده په وس كې وي ځكه دى د الله د پاك كلام تلاوت ته كيني نو ځكه بايد په ښه توګه كيني او رسول الله ﷺ فرمايي : ښه كېناستل هغه دي چې د انسان مخ قبلې ته وي .

رواه الطبراني

قبلې ته مخامخ كېناستل ښه كار دى ثواب ورسره زياتيږي هسې تلاوت په هر حالت كې كېدلى شي كه انسان ولاړ وي ، روان وي ، تكيه يې كړې وي ، او كه په بستره پروت وي اګر كه ثواب يې تر هغه حالت څخه يوڅه كم وي كله چې انسان مخامخ قبلې ته ناست وي .

## دځاى پاكوالى

تلاوت كونكى به كوشش كوي چې په پاك ځاى كې كيني ، پاكې جامې يې په ځان وي او په ښه

حالت کې تلاوت وکوي .

## اعوذ بالله ويل

کله چې تلاوت کونکی تلاوت شروع کوي باید تر هرڅه وړاندې اعوذبالله او بسم الله ورته ووايي لکه الله چې فرمايي : کله چې ته تلاوت کوې په الله باندې له شيطان څخه پنا وغواړه :

سورة النحل آية ۹۸

**فاذَا قَرَأْتَ الْقرآن فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ .**

ترجمه : او کله چې ته لولې قرآن نو پناه وغواړه په الله له شيطان رټلي شوي څخه .

حضرت ابو هريره رضی الله عنه فرمايي : رسول الله ﷺ فرمايل : هر نېك كار چې په بسم الله سره شروع نه کړل شي هغه بې برکته وي .

رواه ابو داود

## تلاوت همېشه کول

تلاوت کونکی بایدتلاوت په داسې توګه باندې وکوي چې دده څخه هره ورځ پاتې نشي اګر که لږ هم وي حضرت عثمان ❼ فرمايي : که زمونږ زړونه پاك وای زمونږ د رب د کلام څخه به کله

هم نه وو ماڼه شوي زه دا ډېره بده ګڼم چې په ما باندې داسې ورځ راشي چې په هغې کې زه قرآن کريم ته ونه ګورم .

## تلاوت د پوره مينې او شوق سره کول

تلاوت کونکی چې کله تلاوت ته وړاندې کيږي بايد د پوره مينې او محبت سره ور وړاندې شي ترڅو دده فکر ذهن خيال ټول په تلاوت کې مصروف شي او د الله ❑ څخه بغير نور ټول فکرونه ورته پريږدي لکه الله ❑ چې فرمايي :

سورة الزمر آية ٢٣

اللَّهُ نَزَّلَ أَحْسَنَ الْحَدِيثِ كِتَاباً مُّتَشَابِهاً مَّثَانِيَ تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلىٰ ذِكْرِ اللَّهِ .

ترجمه : الله ❑ ټوټه ټوټه نازل کړی دی ډېر ښائسته خوږ کلام کتاب مشابه له يو بل سره غبرګ چې زيږ کيږي له ده څخه پوستکي دهغه کسانو چې ويريږي له خپل رب څخه بيا پاسته شي پوستکي ددوی او زړونه ددوی طرف د يادولو د الله ❑ ته

حضرت ابن مسعود ❼ فرمايي : که د چا خوښه وي چې الله او دهغه رسول دې دی خوښ کړي نو ود ګوري که قرآن ده ته ګران وي نو الله ❑ او

دهغه رسول له ده سره مينه كوي . (رواه الطبراني )

## تلاوت په ښائسته آواز سره كول

تلاوت كونكى به كوشش كوي چې د قرآن كريم تلاوت په ښه اواز سره وكوي چې بېرته دى پخپله هم ترې خوند واخلي او كه بل څوك يې واوري په هغه باندې هم خوږ ولګيږي او په زړه يې تاثير وكوي حضرت براء بن عازب ❼ فرمايي : رسول الله ☸ فرمايي : قرآن كريم په خپلو اوازونو ښائسته كړئ .

رواه ابو داود

## د تجويد د قواعدو مطابق تلاوت كول

د قرآن كريم تلاوت به دهغه قواعدو مطابق كوي چې كومې علماوو كرامو ايښودلي دي او په تلاوت كې به كوشش كوي چې هر حرف بېل بېل اداء كړي امام جزري د (جزري) په علم تجويد كې يو كتاب دى دهغه مصنف فرمايي

## تجويد زده كول لازم دي

څوك چې قرآن كريم په تجويد سره نه وايي ګنهګار وي

ځکه الله د تجوید سره نازل کړی دی

او په همغه طریقه باندې تر مونږ پورې رسېدلی دی

سورة المزمل آية ٤

الله فرمايي : وَرَتِّلِ الْقرآن تَرْتِيلاً (قرآن کريم په ترتيل سره وواياست ترتيل) د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې ترتيل څه شی دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د حرفونو په ښه توګه سره اداء کول او د وقف د ځايونو په ښه توګه پېژندل .

## په آياتونو کې فکر (تدبر) کول

امام سيوطي رحمه الله فرمايي : د تدبر صفت دادی چې تلاوت کونکی خپل زړه دهغه څه په معنی کې مصروف وساتي په کوم شي چې تلفظ کوي نو د هرآيت معنی به دده په ذهن کې کيني او په روا او ناروا کې به فکر کوي او په زړه کې د هغه ټولو د قبلولو عقيده ساتي او که په تېره زمانه کې دده نه څه نقصانونه شوي وي دهغې به بښنه غواړي ، کله چې دعذاب په آيت باندې تيريږي ډاريږي به ، زړه به يې نرميږي ، د عذاب نه به پناه غواړي ، د الله د عظمت په بيان باندې په مشتمل آيت چې تېريږي نو دالله

تعظیم به په زړه کې راولي ، ددعا په آیت سره چې تیرېږي نو عاجزي به کوي .

امام حسن بصري رحمه الله فرمایل : ستاسې نه مخکې چې کوم خلك وو ( صحابه رضی الله تعالی عنهم) هغوی به آیتونو ته پدې سترګه کتل چې دا د الله له طرفه دوی ته راغلي خطونه دي دشپې به یې فکر پکې کولو او دورځې به پې عملي کول .

حضرت علی فرمایي : په عبادت کې چې پوهه نه وي او په تلاوت کې چې تدبر نه وي په هغې کې هېڅ خیر نشته

حضرت ابن مسعود فرمایي : څوك چې د پخوانیو او وروستنیو علم غواړي هغه دې په قرآن کریم کې تدبر ( سوچ او فکر) وکوي .

پخوانیو علماوو به ډېر ځله ټوله شپه په یو آیت کې تیروله هغه به یې بیا بیا تلاوت کولو او دهغه په معنی کې به یې فکر کولو کله به یې چې تکرار کولو ، دهغه معنی ګانې به ورته ښکاره کېدلې ، انوار به یې ورته ښکاره کېدل، او دهغه له علومو څخه به پرې را تویېدل .

## دزړه او د اندامونو عاجزي

انسان چې کله تلاوت کوي باید زړه یې په مکمله توګه عاجز او تابع وي سر یې ښکته وي اندامونه یې له سکون او وقار څخه ډك وي او په سنګینۍ

سره نـاست وي کـه ژړا ورتـه ورځي نـو ډېـره ښه ده او کـه نـه ورځي نـو ځـان تـه دې پـه زور ژړا ورولـي او پـدې حـالـت کـې دې کـوښښ کـوي چـې يـوازې وي تـرڅـو لـه ريـا څخه لـرې پـاتـې شـي حضرت حسن ❼ فـرمـايـي : حضرت عمر ❼ بـه د شپې پـه خپـلـه وظيفـه کـې پـه کـوم آيـت تـېرېـدلـو ژړل بـه يـې تـردې چـې و بـه غـورځېدو پـه کـور کـې بـه پـاتـې شـو خلـك بـه يـې د بـېمـارۍ پـوښتـنې تـه راتـلـل .

الله فـرمـايـي :

سورة الحشر آية ٢١

لَوْ أَنزَلْنَا هَذَا الْقرآن عَلَى جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُ خَاشِعاً مُّتَصَدِّعاً مِّنْ خَشْيَةِ اللَّهِ

.ترجمه : كه نازل كړى واى مونږ دا قرآن په يوه غره باندې ( په مثل د انسان او فهم مو ورته وركړى واى لكه انسان ته مو چې وركړى دى ) نو خامخا ليدلى به وو تا هغه غر ويريدونكى فرمان منونكى ټوټې ټوټې كيدونكى له وېرې د عذاب د الله .

حضرت ابن مسعود ❼ فرمايي چې ما رسول الله ☸ ته تلاوت كولو چې ورته مې وكتل د هغه ☸ سترګو اوښكې كولې .

روواه البخاري

حضرت ابو هريره ❼ فرمايي : كله چې دا آيت نازل شو : افمن هذا الحديث تعجبون و تضحكون و لا تبكون ( آيا تاسې دې آيت تعجب كوئ ، خاندئ او ژاړئ نه ) اصحاب الصفه رضى الله تعالى عنهم دومره وژړل چې اوښكې يې په غامبوريو باندې راغلې .

## په قرآن باندې عمل كول

تلاوت كونكى بايد په قرآن باندې عمل وكوي او دهغه په امر باندې عمل وكوي او له نهي څخه يې ځان وساتي او دهغه ټول وصيتونه او نصيحتونه په ځاى كړي او دهغه د حدونو سره ودريږي او دقرآن كريم له حدونوڅخه تېر نشي .

حضرت ابن مسعود ❼ فرمايي : په مونږ كې به چې چا لس آيتونه زده كړل ددې نه به مخكې نه تلو ترڅو به يې چې دهغې معنى ګانې نه وې زده كړې او په هغې باندې به يې عمل نه وو كړى .

## له يادو څخه د قرآن د مخه تلاوت بهتر دى

تلاوت كونكي ته كه كوم سورت ياد هم وي لكن په قرآن كريم كې دكتلو د تلاوت ثواب د يادو د تلاوت څخه زيات دى حضرت ابن مسعود ❼ فرمايي : په قرآن كريم كې ډېر ګورئ .

حضرت ابي سعيد خدري ❼ فرمايي : رسول الله ☸ فرمايل : خپلو سترګو ته دعبادت څخه برخه وركړئ صحابه وو پوښتنه وكوله دسترګو د عبادت برخه څه ده ؟ رسول الله ☸ وفرمايل په قرآن كريم كې كتل .

## دتلاوت په وخت کې چُپ کېدل

کله چې په مجلس کې تلاوت کیږي نو نور خلك به خبرې نه کوي او ټول به هغه تلاوت کونکي ته غوږ نیسي ځکه ددې سره کېدلی شي چې څوك یې په مطلب پوه شي او د هغه په معنی کې دفکر کولو موقع په لاس ورشي او الله هم فرمایي : کله چې تلاوت کیږي نو تاسې هغې ته غوږ کېږئ او چپ اوسئ شاید چې په تاسې باندې رحم وشي لکه چې فرمایي :

سورة الاعراف آیة ٢٠٤

وَ‌اِذَا قُرِئَ الْقرآن فَاسْتَمِعُواْ لَهُ وَأَنصِتُواْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ 0

ترجمه : او کله چې ولوستل شي قرآن نو غوږ کېږدئ تاسې هغه ته او چپ اوسئ تاسې ددې لپار چې په تاسې باندې رحم وشي .

حضرت ابو هریره ❼ فرمایي : چا چې د قرآن کریم یوه آیت ته غوږ ونیولو الله ورته دوه چنده نیکي لیکي او چا چې یو آیت تلاوت کړو دا به دده لپاره د قیامت په ورځ نور وي .
(رواه احمد)

## دتلاوت په دوران کې ځان نه مصروف کول

کله چې تلاوت کونکی تلاوت کوي نور ټول کارونه به شاته کړي او له ځان سره به داسې څه شی نه پریږدي چې دده او په قرآن ي آیتونو کې د سوچ اوفکر کولو په مینځ کې مخل واقع کیږي همدارنګه چې انسان د بل چا تلاوت آوري هم باید ځان دهغه لپاره مکمل فارغ کړي او د خبرو کولو ، خندا کولو ، په جامه یا په بل شي باندې له لوبو کولو ، او دګوتو څخه د ټکونو ویستلو څخه ځان وساتي .

امام مجاهد رحمه الله فرمایي : کله چې ته ارګمی کوې نو تلاوت بس کړه چې کله له ارګمې څخ فارغ شي بیا تلاوت شروع کړه د قرآن کریم د احترام لپاره .

## د قرآن کریم یادول (حفظ کول)

انسان به کوشش کوي چې د قرآن کریم څه برخې ضرور یادې کړي چې دده دننه نور پیدا شي او په انسان باندې د الله ﷻ له طرفه دا یو نعمت دی چې د انسان زړه د قرآن کریم لپاره لوښی شي چې بیا انسان په اسانۍ سره په هر حالت کې کولی شي تلاوت وکوي .

علماء کرام رحمهم الله فرمایي : دومره قرآن

کریم یادول چې دانسان مونځ وربانديږ صحیح شي فرض عین دی په هر مسلمان بانديږ او د الحمد لله یادول او یو بل سورت ورسره یادول واجب دي او دټول قرآن کریم یادول فرض کفایي دی او سنت عین دی له نفلو کولو څخه بهتر دي .

حضرت علی ❼ فرمایي : رسول الله ☸ فرمایل : هغه کس چې په زړه کې یې د قرآن څه برخه نه وي لکه خراب کور داسې وي . (رواه ترمذي )

حضرت ابن عباس ❼ فرمایي : زما په امت کې شریف خلك د قرآن کریم حافظان دي او دشپې خلك دي ( هغه کسان چې دشپې عبادتونه کوي)

رواه البیهقي و الطبراني

## دقرآن حافظ باید ادبناك وي

هغه څوك چې الله ورته د قرآن کریم د حفظ نعمت ور کړی وی باید داسې فکر ونه کوي چې دا کار ما په خپل محنت سره کړی دی بلکه فکر به کوي چې دا د الله له طرفه یو فضل او کرم دی او په خپل ژوند کې به داسې نه وي لکه عام خلك بلکه سنګین او درونږ به وي داسې کارونه به نه کوي چې کوم د قرآن کریم د حافظ سره نه ښایي .

حضرت فضیل بن عیاض رحمه الله فرمایي : د قرآن کریم حافظ د اسلام د جنازې پورته کونکی دی

نو دمستي کونکي سره به مستي نه کوي ، د بې ځایه ګرځېدونکي سره به بې ځایه نه ګرځي ، د خطا کار سره به خطا نه کوي .

حضرت ابن مسعود ❼ فرمايي : د قرآن کريم حافظ ته په کار دي چې دی وپيژندل شي په عبادت سره په شپه کې چې کله خلك ويده وي ، په روژه سره دورځې چې کله خلك خوراك کوي ، په خفګان سره چې کله خلك خوشحال وي ، په ژړا سره کله چې خلك خاندي ، په پټه خوله کېناستلو سره کله چې خلك بې ځایه خبرې کوي ، په عاجزئ سره کله چې خلك کبرونه کوي ، د قرآن کريم حافظ بايد نرم وي بايد سنګين او دروند وي ، چغې وهونکی او سپك نه وي .

## د ياد شوي قرآن تکرار کول

کله چې انسان ته الله ﷻ د يوځه او يا ټول قرآن کريم د يادولو وس ورکړی وي هغه بايد بار بار د هغه دتکرارولو کوشش وکوي او پرې نه ږدي چې بېرته يې هېر شي د قرآن حافظ په دوه شيانو باندې خپل قرآن ساتلی شي :

1. په بار بار تکرار سره او په روزانه ژوند کې د يوځه قرآن د تکرار عادت جوړولو سره

2. دګناهونو څخه د ځان په ساتلو سره ځکه قرآن کريم په هغه زړه کې وخت نشي تېرولی

کوم چې غافل وي .

حضرت انس ❼ فرمايي : رسول الله ﷺ فرمايل : ماته زما د امتيانو ثوابونه را وړاندې کړل شول حتى يو شى چې څوك يې د جومات څخه دجومات د صفايي په نيت وباسي (هغه هم د نېکو کارونو په په لست کې جمع شوي وو) او زما دامت گناهونه هم را وړاندې کړل شول ما ددې نه لويه گناه پکې بله ونه ليده چې کوم بنده ته يو سورت ياد شي او هغه يې بېرته هېر کړي. (رواه الترمذي ابو داود )

☚ کله چې انسان د مانځه نه بهر تلاوت کوي او يا يې آورې په بعض خاصو ځايونو کې څه خاصو کلمو ويل د تلاوت له ادبونو څخه دي چې ستاسې فام ورته را گرځوم :

- د يا أيها الذين آمنوا څخه وروسته : لبيك ربي وسعديك ويل
- د الحمد لله څخه وروسته : آمين ويل
- د سورة بقره څخه ورسته : آمين ويل
- په سورة رحمن کې د هر فبأي آلاء ربکما تکذبان څخه وروسته ولا بشيء من نعمك نكذب فلك الحمد ويل
- د سورة قيامه څخه وروسته : بلى هو قادر ويل

- دسورة الملك نه وروسته : الله رب العالمين ويل
- د سورة المرسلات څخه وروسته آمنت بالله ويل
- د سبّح اسم ربك الأعلى څخه وروسته درى ځله تسبيح ويل
- د سورة التين وروسته بلى وأنا على ذلك من الشاهدين ويل
- د ان الله و ملائكته يصلون ... آيت څخه وروسته درود شريف ويل
- د آيت سجدې څخه وروسته كه په اوداسه كې وو نو سجده به كوي او كنه نو درى ځله به سبحان الله والحمد لله ولا ﺑﺮله ﺑﺮلا الله، والله أكبر ولا حول ولا قوة ﺑﺮلا بالله العلي العظيم) وايي .
- د الله د تسبيح د آيت وروسته به دالله صفايي بيان كوي .
- ددعا د آيت نه وروسته به دعا كوي .
- د استغفار د آيت نه وروسته به دخپلو ګناهونو بښنه غواړي .

## دتلاوت نه وروسته دعا كول

چې كله تلاوت كونكى د تلاوت څخه فارغ شي دعا به

کوي لکن د ټول ختم په آخر کې به دعا ضرور کوي ځکه په داسې حالت کې ددې امید دی چې دا دعا به قبوله شي حضرت انس ❼ به چي کله قرآن کریم ختمولو ټول اهل به یې راټول کړو او دعا به یې وکوله . (رواه ابو داود)

## چې دیو ختم نه فارغ شي په بل ختم شروع کول

دا سنت طریقه ده چې انسان یو ځل د قرآن کریم د تلاوت څخه فارغ شي چې سم دلاسه په بل ختم کې هم شروع وکوي ترڅو دده دواړه تلاوتونه سره وتړل شي اګر که لږ تلاوت هم کوي باید له سرنه یې بیا شروع کړي او که بیا تلاوت بس کوي نو خیر دی .



# ماخذونه



| الكتاب | المؤلف |
|---|---|
| معاني القرآن وإعرابه - للزجّاج | أبو إسحاق إبراهيم السري بن سهل |
| مصاعد النظر للإشراف على مقاصد السور | الإمام برهان الدين البقاعي |
| فتح الرحمن في معربات القرآن | الدكتور/ حمدي بدر الدين إبراهيم |
| إعراب القرآن الكريم | قاسم حميدان دعاس |
| فضائل القرآن ومعالمه وآدابه | أبو عبيد القاسم بن سلام |
| ناسخ الحديث ومنسوخه | الإمام الأثرم |
| اللآلئ الحسان في علوم القرآن | موسى شاهين لاشين |
| فنون الأفنان في عيون علوم القرآن | ابن الجوزي |
| الوجوه والنظائر لألفاظ كتاب الله العزيز | الحسين بن محمد الدامغاني |
| إعراب القرآن | جلال الدين السيوطي |
| الإعراب المحيط من تفسير البحر المحيط | الدكتور ياسين جاسم المحيمد |
| معاني القرآن | الأخفش |
| بصائر ذوي التمييز في لطائف الكتاب العزيز | الفيروزابادي |
| أحكام القرآن | الكيا الهراسي الشافعي |
| الوجيز في حكم تجويد الكتاب العزيز | محمد بن سيدي محمد الأمين |
| العجاب في بيان الأسباب | الحافظ ابن حجر العسقلاني |
| تفسير غريب القرآن | أبو بكر السجستاني |
| التبيان في تفسير غريب القرآن | أحمد بن محمد الهائم الشافعي |
| إعراب القرآن | أبو جعفر النحاس |
| التحبير عند ختم المصحف مفهومه وأحكامه | الدكتور محمد خالد منصور |
| مشكل إعراب القرآن | مكي بن أبي طالب |
| تذكرة الأريب في تفسير الغريب | ابن الجوزي |
| نواسخ القرآن | ابن الجوزي |
| الناسخ والمنسوخ في القرآن الكريم | ابن حزم الأندلسي |
| ناسخ القرآن العزيز ومنسوخه | ابن البارزي |
| الناسخ والمنسوخ | أبو القاسم المقري |
| المصفى بأكف أهل الرسوخ من علم الناسخ والمنسوخ | ابن الجوزي |
| قلائد المرجان في بيان الناسخ والمنسوخ في القرآن | مرعي بن يوسف الكرمي |
| معاني القرآن | أبو جعفر النحاس |

| | |
|---|---|
| مناهل العرفان في علوم القران | الزرقاني |
| البرهان في علوم القران | الإمام الزركشي |
| فضائل القران | الإمام ابن ابي شيبة |
| شرح مقدمة اصول التفسير | الشيخ صالح ال الشيخ |
| مشكل التبيان في إعراب القران | ابو البقاء العكبري |
| مشكل إعراب القران الكريم | عبد الله محمد ابن ءاجرومِ |
| إعراب القران | ابو الحسن الباقولي |
| دراسة ترجيحات الشنقيطي في اضواء البيان | عبدالماجد بن محمد ولي |
| تيسير الرحمن في احكام سجود التلاوة في القران | عصام عبدربه محمد مشاحيت |
| التعريف بسور القران | موقع ام الكتاب |
| تخريج وتحقيق كتاب مفردات القران الكريم | ابوحذيفة الشواني الكردي |
| كتابة القران الكريم في العهد المكي | عبدالرحمن عمر اسبينداري |
| القواعد الحسان في تفسير القران | الشيخ عبدالرحمن بن ناصر السعدي |
| فيض المعين على جمع الاربعين في فضل القران المبين | علي بن سلطان القاريَ |
| الاختلاف في التفسير حقيقته واسبابه | د.وسيم فتح الله |
| إعجاز القران | القاضي ابو بكر الباقلاني |
| القواعد والإشارات في اصول القراءات | ابن ابي الرضا الحموي |
| اللغات في القران | ابن حسنون |
| الناسخ والمنسوخ في القران الكريم | ابن سلامة |
| الناسخ والمنسوخ في كتاب الله تعالى | قتادة بن دعامة السدوسي |
| المعجم المفهرس للتراكيب المتشابهة لفظا في القران الكريم | محمد زكي محمد خضر |
| مجاز القران | ابو عبيدة معمر بن المثنى |
| فضائل القران | الإمام النسائي |
| المهذب فيما وقع في القران من المعرب | جلال الدين السيوطي |
| لباب النقول في اسباب النزول | جلال الدين السيوطي |
| دفع إيهام الاضطراب عن ايات الكتاب | الشيخ محمد المختار الشنقيطي |
| فضائل القران وتلاوته | الإمام ابو الفضل عبد الرحمن الرازي |
| فتح الكريم المنان في اداب حملة القران | علي محمد الصباغ |
| المجتبى في مشكل إعراب القران | ا.د / احمد الخراط |
| اصول التفسير | الشيخ عبدالرحمن بن قاسم |
| فضائل القران | الحافظ ابن كثير |
| فضائل القران | الرازي |
| بحث حول تفسير الفخر الرازي | عبد الرحمن المعلمي |
| القول المنير في علم اصول التفسير | إسماعيل بن عثمان اليمني |

| | |
|---|---|
| احكام القران | الإمام الشافعي |
| هداية المرتاب و غاية الحفاظ و الطلاب في تبيين متشابه الكتاب | علم الدين السخاوي |
| علوم القران عند الإمام ابن عبدالبر | محمد القحطاني (ابو مجاهد) |
| المعجم المفهرس لالفاظ القران الكريم | محمد فؤاد عبدالباقي |
| فنون الافنان في عيون علوم القران | ابن الجوزي |
| الاربعين في فضائل القران واهله العاملين | جمال بن سيد اليماني |
| 15 خطوة وخطوة في مبادئ التجويد لطلاب الحلقات | جمال بن سيد اليماني |

# د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد ﷺ د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله
پښتو
3. آشيانه سوخته
فارسي
4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګليسي
5. دين يې دام دی ددنيا په لار کې اېښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دين نوی مسلمان
پښتو

9. ډم ډمکوجي او لیکوال
پښتو

10. ادیان پشت در
فارسي

11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو

12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو

13. کفري الفاظ
پښتو

14. کل بچه
فارسي

15. معلومات عمومي فارسي

16. د حج لارښود پښتو
او انګلیسي

17. محمد رسول الله ﷺ سیرت اخلاق او
پېژندنه پښتو

18. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اول
پښتو

19. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دوهم
پښتو

20. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه دريم پښتو

21. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه څلرم پښتو

22. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه پنځم پښتو

23. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه شپږم پښتو

24. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه اوم پښتو

25. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه آتم پښتو

26. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه نهم پښتو

27. د اسلامي تاريخ له پانړو څخه لسم پښتو

28. د فقهي کتابونو له پانړو څخه اول پښتو

29. د فقهي کتابونو له پانړو څخه دوهم پښتو

30. د فقهي کتابونو له پانړو څخه دريم پښتو

31. د فقهي کتابونو له پانو څخه څلورم پښتو

32. د فقهي کتابونو له پانو څخه پنځم پښتو

33. د فقهي کتابونو له پانو څخه شپږم پښتو

34. د علم حديث مطالعه پښتو او انګليسي

35. قرآني معلومات لمړی برخه ستاسې په لاس کې